# نجم الاولیاء



دخدای بښلی نجم الدین اخندزاده صاحب آرامگاه

لیکونکي:

محمد گلاب ننگرهاری او خلیلزی

الا ان اولیاء الله لا خوف علیهم [illegible] لا هم یحزنون

سورة [illegible]

# نجم الاولیاء

## دهډې اخونزاده صاحب

لیکونکی: مرحوم محمد ګلاب ننګرهاری
اوخلیل زی

حوت ۱۳۸۲ هـ - ش

بسم الله الرحمن الرحیم

## دکتاب پیژاندنه

دکتاب نوم: نجم الاولیاء

د هډې اخونزاده صاحب

لیکونکی: مرحوم محمد ګلاب "ننګرهاری" او خلیل زی

دچاپ کال: ۱۳۸۳ هـ - ش

دچاپ ځای: دانش خپروندوی ټولنه

کمپوز او دیزاین : عبداللطیف "احمدی"

دچاپ شمیر: (۵۰۰) ټوکه

# فهرست

# زما خبری

زه دډيری اوږدی مودی څخه دمرحوم ننګرهاری صاحب او ددوی دکورنۍ سره اشنا یم او ډير نږدی دوستانه روابط سره لرو او ماته د مشر ورور حیثیت لری خدای (ج) دی مرحوم ته ښښنه وکړی او دخپل رحمت په غيږ کې دی ځای ورکړی ( آمين ).

ددوی دپوهی درایت - شاعرۍ او ليکوالۍ په باب زما په قلم څه ليکل دځان حق نه بولم ځکه دمشرانو په باب څه ليکل او قضاوت کول څه مشکل کار دی ولی څه چاره ده چی مشران لاړ شی نو څوك به يی يادونه کوی او ددوی کارنامی به ليکی؟ او ضرور به يې همدا کشران يادونه کوی او ددوی ياد به ژوندي ساتی.

مرحوم ننګرهاری صاحب دلری او بری پښتونخوا اکثریت خلك پيژنی او دليکوالا نو او شاعرانو سره خوي پوره پوره پيژاندګلوی شته دی.مرحوم ننګرهاری صاحب ښه دينی عالم - شاعر - ليکوال او سیاسی مبصر او مجاهد او خپل رسالت یی په پوره امانت دارۍ ترسره کړی دی دخلکو - وطن او دسیمی دپښتنو حق یی هم ادا کړی دی.

دوی نور چاپ شوی اثار هم لری ولي دا لیکنه یی په ځو پاڼو
کی ددوی ځوی ګران میوند صاحب ماته وسپارله چی ویی ګورم
نیمګړتیا وی یی پوره کړم تر څو په یوه مناسب وخت کی چاپ شی ما
دا لیکنه ولوسته دا چی زه هم دولا یت مآب مرحوم هډی صاحب
دشاګردانو او پیروانو یوی روحانی کورنۍ ته منسوب او غړی یم او
په دی خبره ویاړم نو ددوی په باب یو لږ معلومات زما سره هم و او دا
لیکنه می تر یوه حده پوری بشپړ کړه او په دی امید چي په مناسب
فرصت کی چی مادی قدرت پیدا کړم دچاپ اقدام به یی کوم.
دنیکه مرغه په دی ورځو کی می دافغانستان دراډیو څخه
یو خبر واورید چې دولایت مآب هډی صاحب دعلمی - ملی -
جهادی او روحانی شخصیت په باب دافغانستان دانتقالی اداری
داطلاعاتو اوکلتور دوزارت چی په راس کی یی محترم داطلاعاتو او
کلتور وزیر سید مخدوم "رهین" دی او ددوی په نوښت یو سمینار
جوړ یږی نو هلی ځلی می زیاتی کړی او دا لیکنه می بشپړه کړه او
چاپ می کړه او په دی لاره کی راسره څو تنو بادیانت شعاره ځوانانو
مرسته وکړه او خپل داسلافو تاریخ ته یی نوی رنګینی ورکړه او خپل
وجایب یی تر سره کړی دوی ته کور ودانی وایم او دسر او مال برکت
یی غواړم.زه په خپل وار محترم مخدوم " رهین" ته ددی نیك اقدام
قدر دانی ځرګندوم او دبل خوا راته دا خبره جوته شوه چی محترم "
رهین " دخپلو اسلا فو په پل روان دی او د روحانیت مقام ته درناوی
لری او داخو ځکه چی سیادت مآب مرحوم او مغفور سید میر واعظ
کابلی صاحب ددوی نیکه و او دی ددغه جالی بچی دی او باید دا
ډول نیك کارونه تر سره کړی. مرحوم میرواعظ کابلی صاحب په خپل

وخت او زمان کې دروحانیت په لمن کی ډیر زیات صالح او صادق بچی روزلی دی او دوطن نه ددفاع په لاره کې یې دقربانی لپاره تیار کړی دی اوددوی اسلامی اوافغانی روحیه یی "الا بذکرالله تطمن القلوب" دمبارك قرآن حکیم په بنیاد ژوندی ساتلی ده . مرحوم میرواعظ کابلی صاحب په خپل دوران کی دانګریزی طوفانی طاقت په مقابل کی دجهاد په سنګر کی داسلام او هیواد حق ادا کړی دی او دجهاد فی سبیل الله میدان ته یی وردانګلی دی او دوطن دازادی په لاره کی یی خپل اسلامی او افغانی رسالت تر سره کړی دی که زه ددی مبارك په باب څه لیکم اول خوی دځان حق نه بولم او له بلی خوا ددوی په باب یوی ځانګړی لیکنی ته ضرورت دی چی زما سره په دی باب دومره قلمی وس نشته دی البته په خپل وخت وربآندی لیکنی شوی او ددوی علمی – روحانی او جهادی شخصیت ته درناوی شته او وی به زه دمحترم " رهین " صاحب دا اقدام ددوی له پاره کومه فوق العادګی نه ګنم بلکه دوی خپل فرض ترسره کړی دی او دایی دافغانستان مسلمانو خلکو ته وروښودله چې:

هربیشه گمان مبرکه خالی است
شاید که پلنگ خفته با شد

دافغانستان په انتقالی دوره کی داسی خلك هم شته دی چی دخپلو اسلافو یادونه ژوندی ساتی او تازه کوی یی ، خدای(ج) دی محترم رهین ته توفیق ورکړی چی د هیواد دداسی نامتو علماو – روحانیونو ملی جهادی او سیاسی شخصیتونو دکارنامو په یاد داسی غونډی او سمینار ونه جوړ کړی او دافغانانو دمړه تاریخ

سپرغی بیرته تازه کړی او نړیوالو ته ددوی تاریخی برم او عظمت وړپه یاد کړی او ورته ثابته کړی چی:

خاکساران جهان را به حقارت منگر
تو چی دانی که درین گرد سواری باشد

زه دمرحوم نجم الاولیا د هډی اخونزاده صاحب دا تاریخی اثر دسمینار قدر منو ګډون کونکو ته دیوی ډیری قیمت بها ډالی په توګه تقدیموم خدای(ج) دی وکړی چی ګران هیواد وال یی په لوستو سره خپلو تاریخی وجایبو ته پاملرنه وکړی او دخپلو اسلا فو دقربانیو او کارنامو څخه پند واخلی او خپل مستقبل ته په پاملرنه خپل رسالت ادا کړی.

و من الله التوفیق.

خلیل زی
حوت ۱۳۸۲

# دمرحوم محمد گلاب " ننگرهاری"
# ژوند لیك

مرحوم محمد گلاب " ننگرهاری" دمرحوم مولوی میرا جان ځوی په قوم میرو خیل مومند په کال ( ۱۳۰۷ ) هـ -ش کال دروژی دمیاشتی په اخر و کی د ۱۳۴۶ هجری قمری کی دننگرهار دولا یت د گوشتی د ولسوالی مربوط دارخی په کلی کی په یو عالمه کورنی کی زیږیدلی دی. لومړنی زده کړی یی دخپل مرحوم پلار څخه تر سره کړی دی او په کال ( ۱۳۲۵ ) هـ - ش کی د کابل په عربی دارالعلوم کی دکانکور دآزموینی څخه وروسته شامل شواوپه کال ۱۳۳۲ هـ ش کی ددغه عالی مدرسی څخه چی تعلیمی نصاب یی د مصر د جامع الا ذهر مطابق و فارغ التحصیل شو دوخت دضرورتو نو له امله په کال ۱۳۳۳ هـ ش کی دقبائلو په مستقل ریاست کی دتبلیقاتو دمدیر په حیث مقر شو . وروسته د عدلی دوزارت دمحاکمو دارتباط د اجرایه او په کال ۱۳۴۲ هـ ش دعدلی دوزرات دتحریراتو او عرایضو دلوی مدیر په حیث په کال ۱۳۴۵ هـ - ش دمطبوعاتو په ریاست کی دکتابونو دچاپونی دموسسی دریئس دمعاون په حیث په ( ۱۳۴۷ ) هـ - ش دراډیو افغانستان داطلا عاتو دلوی مدیر په حیث او په کال ۱۳۴۹ هـ -ش دصدارت عظمی دتحریراتو درئیس په حیث په کال ( ۱۳۵۱ ) هـ - ش دقبایلو دمعین په حیث په کال ( ۱۳۵۲ ) هـ -ش دقبایلو دوزارت دسرپرست وزیر په حیث د داود خان دکودتا څخه وروسته بندی شو او کله چی دبند څخه خلاص شو آزادو قبایلو ته یی فرار وکړ او په ( ۱۳۵۵ ) هجر شمسی کی بیرته افغانسنان ته

راغی او په کال ( ۱۳۵۸ ) هـ ـش پاکستان ته هجرت کړی دی او د جناب حضرت صاحب " مجددی" پر جبهه ملی نجات کی د موسس غړی په حیث شامل شو په همدی کال د جبه سکرترا و دمتعددو کمیټو او انجمنونو سرپرست او نظارت کوونکی هم و په کال ( ۱۳۶۵ ) هـ ـش کی دجبهه دمشورتی رئیس هم و او ددولت دریئس دوزیر په رتبه مشاور هم پاتی شوی.

مرحوم ننګرهاری د افغانستان دمجاهدینو داسلامی اتحاد داتحادیو دتسوید دکمیټو دهیابت عضویت یی هم کړی او کوم هیاتونه چی المغرب ته دخپلو سهمونو داخستو لپاره لیږل کیدل نوموړی په کی عضویت درلود او داسلامی هیوادونو دخارجه چارو دوزیرانو په کنفرانس کی یی هم ګډون کړی دی. نوموړی مرحوم په هغه مشورتی شوار کی چی دفبروری میاشت کال ( ۱۹۷۹ م جوړه وه دغړی په حیث ګډون کړی دی او داسی نوری وړی غتی دندی چی دجبه دمقام له خواورته سپارل کیدلی اجرا کړی دی. مرحوم "ننګرهاری" دخپل ژوند زیاته برخه دلرو برو پښتنو دحقوقو په حمایت او په دی لاره کی یی خپل ځان تبلیغ ته وقف کړی و.

مرحوم ننګرهاری دنیك برخورد لرونکی و او هر چا سره یی په صمیمیت چال چلند کاو او دچا سره په کینه او خصومت کی نه و.

دا چی دی نن زموږ په منځ کی نشته دی پوره نیمګړ تیایی حس کوو دخدای له درباره ورته دبښنی سوال کوو الله تعالی دی ورته په جنتونو کی برخه ورکړی امین.

مقصود آباد ـ نوی کلی

حوت - ( ۱۳۸۲ ) هـ ـش

بسم الله الرحمن الرحيم

# نجم الاولياء

الحمد لله رب العلمين والعاقبه للمتقين

بی له شکه اوبی له مبالغی دوخت دامام الا ولیاء حضرت نجم الدین په نامه لیکلو قلم لړزیږی او هیبت پری راځی.

په کومه ساحه او په کومه مقوله کی به څوك دهغه دفضایلو او مفاخرو حق ادا کړی او دهغه کارنامی به راڅرگندی کړی؟

دده ددینی علم او فضیلت به څوك بیان کړی شی. څوك به دهغه تالیفات او قلمی ارشادات به وشماری، دخدای په لار کی دده دمقدس او سپیڅلی جهاد دمتانت او شجاعت او استقامت داستانونه په څوك بیان کاندی او بالا خره هغه به څوك وی چه دسخاوت او مروت په باب دده خصلت او رویه وڅیړی؟

نجم الهدی حضرت نجم الدین بیشکه چه دخپل وخت درښا او لاربنودنی یو لوړ میناردی او دخپل صنف داولیاء و په نسبت ددی مصرع مصداق دی:

آنچه خوبان همه دارند تو تنها داری

قلم به ملا مته نه کړم که دده په مبارك نامه اخستلو لړ زیږی ځکه چه دده په نامه اوس هم په لندن کی پیرنګیان لړزیږی او په سجین دوزخ کی شیطانان.

دغسی یو جامع الکمالات او موفور الصفات به څوك چیرته پیدا کړی چه په یو وخت پکی لکه درحمان بابا دشعرو هر چا دپاره په زړه پوری او بسیا کونکی مضمون موجود وی.

که څوك دینی علم دنجات دوسیلی په حیث تر هر څه مهم بولی نو په علم کی زمونږ دصاحب کوډی دلاړی دی او دغسی یوه کتابخانه یی ترتیب کړی چه نظیر به یي ډیر لږ پیدا شی.

که سخاوت او مهمان نوازی او ایثار فی سبیل الله دانسان دپاره ډیر لوی خصلت بولی نو یو عمر د لوکیږ او دبوکیږ او دهند او دمامند وړی په دی ستر دستار خوان ماړه شوی دی او که جهاد فی‌سبیل الله دچا په نزد دوخت تر ټولو غټ او مهم ضرورت وی نو دصاحب دا دومره شوق او شغف دجهاد سره سړی ته دا روحیه ورکوی چه ګویا ددی دپاره پیدا شوی او جهاد دده دپاره منځ ته راغلی دی.

علماء او مشایخ ، دقام خانان او مشران او عصری سیاسی ټایپ ځوانان هر یو دلته خپل خپل ایدیال او دپسند مطلب مومی او دانکار هیڅ لاره نه لری.

## دژوندانه لومړی برخې:

دپښتنو یو ډیر بدرواج دی چه دتاریخ او نیټی څه خیال نه ساتی بیا هم د هډی ځوان دا استثنا لری چه دوفات تاریخ خوئي په هجری قمری سنه کی لیکل شوی دی، په زرها و دغسی روحانی

شخصیتونه او مشهور زیارتونه دي چه قبرمبارك یې په دربو کې پټ دي. نرې پیړې او لنډې اوږدې جنډې پرې بیشماره پکې دي، شنې سرې او تورې سپینې چیرړې په زرها و په جنډو پورې رپیږې خو که دقبر کوز او بر سرو ګورې یاد منجور نه پوښتنه وکړې نو سودم ته به شین وې او دافسانو او خرافاتو نه غیر دصاحب مرقد دعلم، عمل، طریقت او مجاهدت په باب یوه صحیح خبره به هم وانه ورې او نه به دزوکړې یاوفات په تاریخ باندې خبر شي. ما دیو محترم شخص نه یوه ورځ فقط دومره پو ښتنه کړې وه چه ستا د پیر څه نوم دی؟ هغه به بیا هر هر چیرې ویل چه فلا نې خو پیران نه منې.

هغه څه چه دنجم العرفا په باب قطعي طور ثابت دي هغه دا دي چه مبارك دغزنې ولا یت دمیرې ( اندړو ) دولسوالې دسپین کلي اوسیدونکې دي خو په ختـه اندړ نه دي کاکړ دي.

یوه عجیبه خبره خو دا هم ده چه دتره کې لعین کلي په همدې غزنې ولا یت کې سور کلي بلل کیږي خو دنجم المشایخ کلي سپین کلي بلل کیږي، هغه داور لمبې شیندي او دا دصبح صادق ګورې او غنچې غنچې رڼا ګانې خوروي.

دا هم ثابته ده چه دنجم المشایخ له نامه سره اخندزاده لفظ په تواتر ضمیمه دی معلومیږي چه یه یوه عالمه او دینداره کورنۍ کې را پورته شوی دی. دتحصیل دآغاز په برخه کې که هر څه ووایو تخمین او اټکل به وي خبره نوښه به دا وي چه محترم لوستونکي دا اټکل پخپله وکړي یا که خدای ته منظور وي او زما بزرګان پخپله څېړنه کې په دې برخه کې بریالي شوي وي.

دا هم ثابته ده چه نجم الاسلام دبلوغ نه مخکی مسافر شوی دی ځکه ددی به دفرض لمانځه په دعا کی ویل: زما میری مورته دعا وکړئ چه خدای ورسره احسان وکړی که چیری هغی زه پخپل کاله کی تنګ کړی نه وای نو وطن خوږ دی ما به نه وای پریښی او دا فضل چه په ما شوی دی... زما دمور بی بی برکت دی.

## طریقت او لاس نیوی:

دا چه صاحب مبارك په کوم تاریخ کی دکابل تندورسازۍ ته تشریف راوړی دی نیته به شاید چه په لاس رانه شی مګر دا وخت دی چه صاحب په ننګرهار او صوبه سرحد او دافغانستان په مرکزی سیمو کی تحصیلات تکمیل کړی دی دا باچا ګردشی ده ، شیرعلی خان دی ، افضل خان دی، اعظم خان دی او عبدالرحمن خان دی.

یو خواکابل سرداران پخپلو کی نښتی دی او دګلونو غوندی ځامن او وریرونه ئي یکی رژیږی خو بل پلو پیرنګی دی چه دمکر او فریب جالونه ئي خواره کړی دی او افغانستان پخپل قلمرو او مستعمراتو کی راوستل غواړی.

زمونږ دا عذر بیا هم دګران لوستونکی په وړاندی تیتی سترګی ولاړ دی چه صاحب مبارك د سیدو دغوث حضرت مولا نا عبدالغفور نه څه وخت لاس نیوه وکړه .

دا تو جیه په زړورتیا سره مخی ته راځی چه نجم الا ولیا والدین صوبه سرحد کی دتحصیل په وخت ددی پیراعظم پلوشی لیدلی دی‌اوپه همدغه زمانه کی دمریدانو په سلك کی‌داخل شوی دی.

دصاحب او دصاحب پہ شان قد او روهستیو نظر یو خو دمشرق دبیشمارو امتیازاتو پہ وجہ ختیځ لوری تہ و ځکہ چہ حضرت سیدالکونین صاحب لولاك محمد رسول الله او گرد معروف انبیا او رسل پہ مشرق کی پیدا شوی ، مکہ مکرمہ او مدینہ منوری پہ مشرق کی دی، صبح صادق دمشرق دگریوان نہ راوځی او دا چہ لمر سپوږمی دواړه دمشرق نہ دخپل مزلہ آغاز کوی او اخری امتیاز د 'وللّٰه المشرق و المغرب' دی مگر دا وخت دهمدغہ با فضیلتہ مشرق دخیرن خو او شلیدلی گریوان نہ داستعمار دنړۍ رنځ مکروبونہ هر پلو پہ خوریدو و او دهیواد کانی بوټی دالجهاد الجهاد ناری وهلی هغہ وخت پہ قطب الاقطاب نجم الهدی والدین پہ جهادی صف کی داخیلیدہ مونږ نہ پوهیږو چہ ددوی عمر بہ څو و ؟ مگر دا حقیقت ثابت دی چہ دغہ وخت دوطن دینی، علمی، سیاسی او قومی شخصیتونو دطریقت او مشیخت یوہ میمونہ او مبارکہ حلقہ منځ تہ راوستلی وہ چہ پہ یو وخت ئی دعلم مثال روښانہ ساتہ ، دطریقت او مشخیت پہ انوارو ئي دمادی کثافت تیاری رټا کولی او دخپل ستر او تاریخی وطن ددفاع پروگرام ئي هم کنترولا وہ ولی چہ باچایان کمزوری و بی اثرہ و او بدبختانہ چہ پخپل منځکی نښتی و او دیو بل دضدہ بہ ئي دپیرنگی سرہ هم ساز باز تہ کلہ کلہ زړہ ښہ کاوہ .

سوات صاحب ، هډی صاحب، بتخاك حضرت صاحب، تگاب ملا صاحب ، موسهی صاحبزادہ صاحب، ملا مشك عالم اخندزادہ صاحب او پیوندہ صاحب، څپری ملا صاحب او دهډی صاحب دننگرهار گروپ سرکانو میا صاحب اسلا مپور پاچا صاحب،

تیر گرو پاچا صاحب، بړو میا صاحب، استاد صاحب ، بابړی ملا صاحب، صوفی صاحب ، چکنور ملا صاحب ، شگی ملا صاحب چې خپل نوم یی ملا صا برالله و دهډی اخونزاده صاحب دخاصو شاگردانو په جمله کی و. وایی چیی هډي صاحب (رح) به ویل چی شگی ملا مورزاده ولی دی دښیراو او ازارڅخه یی باید ځان وساتئ. په نقشبندیه کی ورته خپله شخصاً اخونزاده صاحب دهډی اذن کړی و او دهمدی جناب په امر کنړ ته دتبلیغ او دعوت په غرض لیږل شوی او ددیو گل ددری‌دچمبیل په کلی کی مستقر شو او ساپو او کوهستان خلکو ته لکه چلس – ازتیت – شماست کړنگل – ویگل – کانتیوا – پارون امربالمعروف او نهی عن المنکر کاو او دهډی صاحب سره یی په ټولو سفرونو او غزاگانو کی فعاله ونډه درلوده دا چی دطریقت او ماذونی سلسله څه خاص مراحل لری په قادریه کی کوم سبق پاتی و چی تر هغه وروسته به ورته په قادریه کی هم اذن کیده چی په دی وختو کی جناب والا مقام ناروغه شو او مشر پاچا صاحب یا تیرگړو پاچا صاحب ته اخونزاده صاحب امر کړی ؤ چی شگی ملا صاحب زما څخه پاتی شو او په قادریه کی می ورته اذن و نه شو کړی دغه یو سبق ته هم ورته ووایی او ماذون په یی کړی هم هغه و چی مشرپاچا صاحب دخپل پیر دغه امانت دهغه اهل ته وسپاره او په قادریه کی یی ماذون کړ شگی ملا صاحب دتیرگړو پاچاصاحب او ددوی دکورنی خاص درناوی کاو او تر مرگه یی دوی ته عقیدت څرگندونی کولی.او ستر مجاهد او سیاسی شخصیت ترنگزو حاجی صاحب او ددوی څنگ ته قومی مشران او لیکوالان او

بادرده اشخاصو یو مربوط دفاعی خط منځ ته راوړی و او دنو لسمی پیړۍ اوږده زمانه چه اکثره دانګریزانو خلاف په جهاد کی تیره شوی ده ددی ښاغلو او مړنو شخصیتونو د شهکار ونو او کارنامو یو غوړیدلی کتاب دی.

دصاحب سوات په ستاینه او نمانځنه کتابونه ډك دی مخصوصاً هغه کتابونه چه دهند علماء و او لیکوالو دهمدی نولسم قرن په ماجرا لیکلی دی یو مخ ( دیو نیم نه بغیر) دسوات صاحب په ثنا صفت رطب اللسان دی. منجمله سید جمال الدین افغانی پخپل معروف کتاب تتمة البیان فی تاریخ الا فغان کی دسوات صاحب متعلق لیکی: " دسیمی د مقتدرو پیرانو په جمله کی یو عبدالغفور صاحب دی چه دسوات اخوند په نامه یادیږی، دی په سوات او بونیر باندی متنفذو په ټول افغانستان بلکه په هنداوبخارا کی ئی ډیر مریدان و دی پخپل ځان ډیر سخت ګیر و او دی یو فقیه زاهدو چه دجوارو ډوډۍ به ئي خوړه او دهغو وزو شوده به ئي څښل چه یو اځی دغرو په وښو کی به څریدي.

ده په انګریزانو ډیری حملی کړی دی او اکثره ئي فتح په نصیب شوی ده . ده به هری خواته فتو اوي خپرولی او خلك به ئي جهاد ته رابلل او زرګونو خلکو به دده بلنی ته لبیك وایه .

سید احمد وهابی او دهغه د ډلی هندی وهابیانو به هم دسوات صاحب تایید کاوه. دا هغه خلك و چه دهندو ستان دسنیانو نه راپڅ شوی و او دبونیر په علا قه کی دیره شوی وو. دا هم کیدی شی چه حضرت نجم الدین صاحب دمردان ډویژن په ځنګلی سیمو کی

چیرته چه حضرت مولانا عبدالغفور دزهد او ریاضت په لړ کی اوږده زمانه دیره پاتی شوی دی او ددینی علومو لویه ډله طالبان هم همیشه ورسره پاتی شوی دی دطالبانو په ډله کی پاتی شوی وی او ورو ورو دشوق طلب او طوق جستجو له برکته دوی دواړه لکه نظام الدین اولیاء او امیر خسرو دهلوی یو په بل کی محو شوی دی.

دا خبره په متواتر ډول په شفاهی روایاتو کی درج ده چه حضرت مولانا نجم الدین ډیره زیاته موده په سیدو شریف کی دخپل مرشد او استاذ سره تیره کړی ده او چه کله نجم علوم الدین په موقع موجود دی نو حضرت غوث سیدو دی په امامت گمارلی دی.

دخپل مرشد او استاذ سره دادب او تعظیم په برخه کی دده دا اصالت وچه هیڅ وخت دسیدو شریف په ښاراو نږدی فضا کې په پښو کې نه دی گرځیدلی او په دغه سیمه کی یی کله هم اودس نه دی مات کړی.

از خدا خواهیم توفیق ادب

دا هم یوه ثابته خبره ده چه دپښتنو پیشوا حضرت نجم الدین دخپل مرشد او لاربښود په حکم ننگرهار او په ننگرهار کی داول وار له پاره دشینوارو دغنی خېلو په سیمه کی تریل ته راغلی دی او هلته دتریل میرانو صاحبانو یا پاچاصاحبانو سره چی دوی روحانی کور و پاتی شوی دی او بیا وریوسته هډه دخپل هستوگنځی په حیث غوره کړی ده . دا دمرشدینو عامه قاعده ده چه بنا په یو مصلحت خپلو خلفاء و ته ددیری او مرکز په حیث یو ځای په گوته کوی.

دحضرت قطب الا قطاب علی بن عثمان الهجویری الجلابی او دهغوی دمرشد تر منځ لا هور ته دسفر یم باب مکالمه او بالاخره دمرشد عتاب آمیز اصرار ددی طریقې یو معروف مثال دی.

دارشاد او تبلیغ دپاره په حیثیت دیوی مرکزی نقطی دهډی اهمیت بالکل ځرګند دی. هډه دولا یت وستل او منځنی ده ، شنوارو، خوږ یانو، ورکزو، پړوځو کنو ، اپریدو ، ساپو او مومندو قبایلو سره هم دارتباط دپاره ډیره مساعده ده خو که چیری لږ وړاندی نظر وکړو نو دا حقیقت راښکاره کیږی چه دمرشد اصل غرض دتك تور هندوستان نه ددی عظیمی اژدها ( انګریزی استعمار) دمقابلی دپاره هډه یو بهترین سنګر کیدی شو. په ننګرهارکې دجهاد دجذبی دغسی نه ستړی کیدونکی وجود چه سل کاله ( تقریباً ) دوام ئي وکړ دا دسوات صاحب او هډی صاحب برکت و چه دارشاد او لا رښونی رڼاګانی ئي په ټول هیواد کی خوری کړی او ځای په ځای ئي واړه واړه مګر فعال جهادی او ارشادی مرکزونه منځ ته راوستل چه یو مربوط او مضبوط دفاعی ځنځیر تری جوړ شو او هیڅکله هم انګریزان سره ددغه ټول کبر او غرور دهغه په شلو لو کامیاب نه شول.

## صاحب مومندو ته تشریف یوور:

دتاریخ معذرت خو مونږ دیوقوی ډال په حیث دهری پېښې په ارتباط وړاندی کوو دا به عجیبه نه دی که مونږ دیوی پېښې تاریخ ونه ښودی شو بلکه عجیبه خو به داوی که تصادفاً دیوی پېښې و ذکر سره تاریخ هم ثبت وی.

صاحب دکابل په تندررسازۍ کی څومره موده تیره کړی او دا چه اوړی ژمی ثابت و که سیار؟ څه خاصه تصریح په نظر نه راځی مگر دهډی دهستوړنی په دوران کی دځینو مرثیو او مدحیه اشعارو په استناد ویلی شو چه صاحب دننگرهار دوسیدو په دوران کی اوړی پغمان ته تشریف وړ. داخبره په عقل هم برابره ده ځکه ددی کوچ نه ارشاد او تبلیغ ته څه نقصان نه پیښیده مگر دګرمۍ پیتی صاحب دپاره په ننگرهار کی ډیر دروند و.

بلا خره دحوادثو دبهیر له کبله ښه وخت راغی چه صاحب مبارك دننگرهار نه ووځی او په یو مضبوط مقام کی سنگر ونیسی. په دی برخه کی دتوجه وړ لومړی نکته داده چه صاحب په کوم تاریخ ننگرهار پریښود؟

دوهمه نکته داده چه دا دپیر او استاذ امرو ؟ که دا دعبدالرحمان خان خلاف په ۱۸۸۱ م کی دعلماء و خوانینو او روحانیونو داشتعال او ناراضۍ له کبله و ؟ او که نه دصاحب او امیر دتفاهم او مشوری په نتیجه کی دا سفر واقع شوی دی؟ بل دا چه هډی صاحب مومند ولی دخپل مرکز په حیث غوره کړل؟ غالبه دا ده

چه هډی صاحب په ۸۱- ۱۸۸۲ یعنی ۹۸- ۱۲۹۹ ﻫ ـق کې ننگرهار پریښی دی. دامیر عبدالرحمن خان خلاف دده دسختی او دانگریزانو دلمسون په وجه مختلف قیامونه منځ ته راغلل په دی قیامونو کی تر ټولو اهم قیام دعلماء او قومی مشرانو دی ملامشك عالم ( دین محمد غازی) چه امیر به ورته موش عالم وایه په دوران کی یوه شخصی ماجرا لری ووژل شو، جناب صاحبزاده صاحب موسهی لوګر، جناب فضیلتمآب مولنا حمیدالله تګابی او یو سلسله دقندهار او کوهستان او دنور سیمو علماء او روحانیون او مشایخ لکه ملا امیر محمد خان او ملا عبدالله خان او ملا عبدالرحیم گرفتار شول که څه هم تعذیب شول مګر دخلکو دشدید عکس العمل داندیښنی له کبله ونه وژلی شول. په قومی مشرانو کی جنرال محمد خان وردګ، محمد افضل خان وردګ میر بچه خان کوهدامنی، میر درویش خان بابه قشقاری، برزو خان ، غلام محمد خان او جلندر خان تتمدره ای، محمد عظیم او عبدالسمیع او فتح محمد خان بایانی ( چاریکاری ) عبدالغیاث خان جلا لزائي حسین علی خان سپهسالار ( دشیر علی خان ) او داود شاه خان نایب سالار ، عبدالرحیم خان برکټ ، دلا ور خان میمنګی محمد اکبر خان لعلپوری، پیر دوست خان احمدزائي، محمد افضل صاحب او محمد موسی خان صافی، محمد شاه خان غلجائي، عصمت الله خان او ارسلاح خان او بهرام خان جبار خیل دامیر خلاف په فعالیت لاس پوری کړ، په دی کسانو کی څوك پټ په پټه او په دسیسه ای ډول ووژلی شول او البته دچا چه اجل نه و سلا مت پاتی شو.

دلته دوه خاطری ماته مناسب ښکاری چه درج کړی شی لومړی خبره داده چه ددی خلکو سره دامیر دعداوت یوه اهمه نکته داده چه دوی دخپل اجتماعی موقعیت او نیکنامی په وجه دحکومت اطاعت ته چندان اهمیت نه ورکاوه او له دی درکه ډیر واقعات دتاریخ په خاطر اتو کی ثبت دی یا خو داوه چه امیردسلطنت واګی او جلب دغو قومی مشرانو ته چه دوطندوستۍ او انګریز دشمنۍ له کبله ئي ډیر زیات محبوبیت موندلی و خوشی کړی وای او یا دا چه دملوك الطوایفۍ په مقابل کی ئي موقف نیولی وای او حساب ئی فیصله کړی وای. امیر همدغه دوهمه لاره غوره کړه .

دایو دلچسپ او اوږ د بحث دی چه دائي ځای نه دی دوهمه خاطره دهغی چارر بیتی ده چه غریب چپرهاری دننګرهار دغازی محمد جان په مرثیه کی جوړه کړی وه او دغو مره شهرت ئي وموند چه امیر په مخکی واورول شوه او امیر سمدستی په ډیر هیبت دغریب دحاضر یدو حکم وکړ غریب په ځان پوه و چه دی ولی غوښتل شوی دی نو ځکه هغه خپل عذر تیار کړی و. غریب ویلی و محمد جان خان غوندی غازی له دنیا تیر شو.

مړکه امیر په تڼکۍ ګیر شو

غریب چه دباچا حضورته ورسید باچا ورته وویل غریبه تا دمحمد جان په مرګ چاربیته جوړه کړی ده ؟ غریب وویل هو ! بلا دی واخلم.

امیر وویل هغه څنګه ده ؟

غریب وویل داسی ده :

محمد جان غوندی غازی له دنیا تیر شو
مړ که الله په زمکه زیر شو.

امیر په دی حاضر جوابۍ وخندل او غریب ئي رخصت کړ قوی احتمال همدادی چه جناب نجم سماء الدین په همدغه وخت راوتلی وی او دعلماء و مشایخو او روحانیونو گرفتاری او دژوند مشکلات لکه دقومی هیرو گانو غوندی دامیر دملکی او داخلی سیاست له کبله دی، ځوك چه امیر په نزد ډیر خطر ناك دی او گرفتار شوی دی نو هغوی لکه جناب فضیلتمآب امیر محمد ریزه کوهستانی په شهادت رسول شوی دی او ځوك چه ډیر خطر ناك نه دی بلل شوی هغوی د توافق ددرجی په اساس نه یواځی دا چه خوشی شوی دی بلکه دامیر د توجه وړ هم گرځیدلی دی. زما دا رایه ده چه کومه قصه چه ددغو علماء و او روحانیونو دگرفتاری دعلت او هدف په ډول خپره شوی ده چه گواکی امیر دوی گرفتار کړل چه په هډی صاحب دکفر فتوی ولگوی اَو فلا نی صاحب دا خبره ومنله او فلا نی صاحب ونه منله داراته یوه افسانه ښکاری ښه به دا وی چه ددی قسم موضوعاتو د صفائي دپاره دجناپ هډی صاحب دنقل مکان دعلت په باب اختلافات وځیړو.

عام طور دعلماء او مشایخو ( دیو کس نیم په استثناء ) دا رایه ده چه صاحب دهډی دامیر دخصومت او کدورت له کبله هډه پریښی ده او مومند و ته ئی تشریف وړی دی. نویسندگان اودعصری طرز فکر خاوندان دا موقف لری چه دانقل مکان په مشوره شوی ده او امیر په مسلسل ډول نقد و جنس او جنگی مهمات د ډیرو خاصو

اعتمادی کسانو په لاس غازی نجم الدین ته استولی دی. داسی روایت هم شوی دی چی امیر عبدالرحمن خان دانګریزانو دفشار له امله څو واری دهډی اخونداده صاحب ته وویل چي موږ دانګریزانو دمقابلې طاقت نه لرو او ماته وایی چی ته خپل روحانی او عالم شخصیت منع کړه چي زموږ په مقابل کی خلك نه راپاروی ولی اخوندزاده صاحب دده په دی خبره باندی عمل نه کاوه په اخر واري راوغوښت او امری ورباندی وکړ چی سریی غوخ کړی ځکه چی جناب جلاد خانی ته دسرغوڅونی لپاره ولیږل شو وایي چی جلا د راته وویل څه ارمان لری؟ اخونداده صاحب مرحوم ورته وویل چی دا ارمان دپوره کونی مالك بل څوك دی ته دی دخپل بادار امر تر سره کړه. جلاد ورته وویل چی که کومه خبره لری راته ووایه جناب ورته ویل چی ددوه رکعته لمونځ وخت که راکوی و به یي کړم. جلاد ورته ویلی و چی ویی کړه. هغه و چی کله دوی دوه رکعته لمونځ کړی و دعای کړی و ه جلاد ته ودریدلی و او روته ویلی و چی دبادار امر دی عملی کړی جلا د ورته ویلی و چی په دغه قتل ګاه باندی سر کیږده چی زه یی غوڅ کړم جناب ورته ویلی و چی تا څو ولیدل چی ما خپل سر خپل رب ته ښکته کړ او بل وخت یی هر چاته نه ټیټوم زه ولاړ یم او ته می سر وهه!

جلاد ورته ویل چی زه جګ سرونه نه وهم ورزه په مخه دی ښه شه امیر دی ما ستا په عوض غرغره او سر غوڅ کړی ولی دومره درته وایم که وي نیولی نو ارو مرو دی وژنی خوشپي وباسه او دافغانستان څخه ووځه همغه و چی اخوندزاده وتی و او کوم ملګری

چې دده سرنوشت ته بهر انتظار و دهغو په ملګرتیا په ټکنده غرمه کې دکامې دولسوالۍ د ذرخیلو په جاله پورې غاړه او دخپلو خلکو په مرسته دسرحد خواته تللی دی.

هغه څوك چې دا خبره کوي چې دحکومت په رای او خوښه تللی دی دجناب شخصیت جریحه دار کوي داخبره دواقعیت څخه لرې ده .

دواړه خوا ته لیکلی او مستند دلا یل موجود دی مثلاً: امیر محمد ریزه کوهستانی په یوه قومی جرګه کې په کمال صراحت وائي چه امیر داولوالامر حیثیت دلاسه ورکړی دی دخلکو ما لونه په غضب اخلی، وینی تویوی، بیګناه مسلمانان په زندان کې اچوی او دعلماء او روحانیونو دستي دښمن دی او ددوی بونسټ ویستل غواړی، نه ګورئ چه ملا مشك عالم او ډیر علماء او مشایخ ئي بندیان کړی او ملا نجم الدین ئي قبایلو ته فرار کړی دی، دده سترګې ویستل او له تخته شړل په کار دی.

پخپله امیر وقتاً فوقتا په عامو مجلسونو کې د صاحب په خلاف خبرې کوی او حتی په یو لیك کې ورته لیکيچه ته دانګریزانو سړی ئي.

جناب هډې صاحب دامیر ددی لیك جواب ورکوی چه صاحبه ! تا ته یاددی چه دیو ملا قات په دوران کې دی امر وکړ چه زما پټو او تفنګچه ملا صاحب ته ورکړئ خو ما وویل چه دشاهی پټو شکران نه شم پوره کولی معذرت غواړم تفنګچه دجهاد وسیله ده دا به قبوله کړم. تا ته معلومه ده چه زه ښځه او اولاد نه لرم، زما

عمرداویاو په حدود کی دی نو زه به په دغسی حالت کی دانگریز نوکری په کوم دلیل وکړم؟

په یو بل لیك صاحب امیر ته اطمینان ورکوی چه زه دبادشاهی تمه خور نه یم نو ځکه ښائي چه تا سو له ما څخه اندیشنه او تشویش ونه لرئ.

امیر ددی لیك په جواب کی لیکی چه ما کله ویلی دی چه ته زما دتاج و تخت رقیب ئی؟ زه په دی خبره ډیر ښه پوهیږم چه شاهی قباستا په نار ساقد باندی سمه نه راځی.

هسی هم بروزن بیت دامیرسره دا خبره په عقل سمون خوری چه صاحب به دده دظلم او عداوت له کبله دننگرهار په ترك مجبور شوی وی خو دا خلك یا له بیدردی یا له ناخبری یا له تعصبه او خودغرضی دا فکر نه شی کولی چه امیر یو هوښیار، سیاڼه ، او نهایت مدبر شخصی دی چه لکه د ملا چرګك دزمکی لا ندی او به وینی. دافغانستان دموجوده سیاسي نقشی تکمیل، دنورستان په باب دده دپیش بینی صدق، دروسانو متعلق دده دنظرئي صحت او اصابت او دغسی دانگریزغوندی مکار دشمن دیو بونه ښکار په حیثیت دپاتی نیمگړی نیمه خوا افغانستان ژغورل او ساتل دنولسم قرن یو شاهکار دی. زمونږ انقلا بی ( ! ) مورخین لکه مرحوم غبار چه په مختلفو مرحلو کی دده دصایب نظری اعترافات کوی خو نا څاپه دډیورنډ دمعاهدی په وخت دکنځلو یو ضر به شوی کلا شنکوف پری چلوی او عیاش ، احمق او ... او ... خطابات ورکوی. دی ئي څه کوی، دده له کوره څه ځی که دخپل یو جریب پټی په باب ئی دغسی

تقاضا کولی شوای لکه دعبدالرحمن دسلطنت په باب ئي چه کوی نو مونږ به ورته نمره ورکړی وای خو متاسفانه چه دغسی خلك هرځای پروپاګند پالیسی لری او موقف ئي دادی چه " از هر طرف که تشنه شود خیر اسلام است . "

ځینی ورونه دشلم قرن دعجایباتو په سینماسکوپ کی ناست دی دسلو کلالو داداری ارزښتونه دموجوده وخت اداره خو دسل کلن تیر شوی دور د طور طریقو متقاضی نه وای، اوس به مونږ ګورو چه خدای افغانستان داسلا می نظام په جوړیدو دنمانځنی او کارفرمایان او واکمنان ئي دقین او پانی او تیل داغ نه سختی سزاګانی فرمایش نه کاندی.

## دمرحوم سناتور آغا جان دری نوری بیان:

دی دجناب فضیلتمآب سید زیور شاه صاحب ځوی او دجناب فضیلتمآب مرحوم سیدحضرتشاه ( تیرګړو پاچا صاحب دجناب فاضل دانشمند سید شمس الدین مجروح پلار ) ورارہ دی.

دی وائي چه زما قبله ګاه دامیر او حضرت ملا نجم الدین منځکی یو صاحب سرواسط و.

جناب سید زیورشاه چه دصاحب مرید او ډیر خاص معتقد و اوتره ئي مرحوم سید حضرتشاه دهډی صاحب لوموړی ماذون او خلیفه و. دی به د صاحب دیو معتقد په حیث دزیارت او ملا قات او سبق په استناد دصاحب مبارك حضورته ورته او کومکونه به ئي هم

دپروګرام او تدبير مطابق هغوی ته مخامخ کول او که څه مشوره به وه نو هغه به ئي هم په خاص او محرم مجلس کی ورته رسوله .

## دمیرغلام محمد غبار مرحوم رایه :

مرحوم مير غلام محمد غبار په تاريخ افغانستان کی وائي چه ملا نجم الدين اخنداده دانګريزيو ډير لوی دشمن و ، دی يو معروف مجاهد و چه قبايلی خلك پری راټول و او دامير له خوا ورسره مرسته او کمك کيده .

دی وائي چه ملا صاحب يو عملی عالم و او لکه دخپل پير ملا عبدالغفور معروف په سوات صاحب يو مجاهد ميړه ، سرښندونکی او داستعمار فرنګ دشمن و دده پير لويه خانقا او لنګر لاره چه دملی مجاهدينو دمرکز په حيث تری کار اخستل کيده او دغلته دانګريز خلاف د ډيرو حملو ترون او پروګرام جوړه شوی و.

غبار دملا نجم الدين صاحب سره دامير دعلاقی يو بل مثال هم پيش کوی وائي چه ملا عبدالوهاب ) پير صاحب مانکی ) دهډی صاحب سره ډير شديد اختلاف لاره . دا اختلاف په ډيرو معمولی فروعی مسايلو وخو مانکی صاحب ورته ډير اهميت ورکاوه او په دغه وسيله ئي دهډی صاحب دپروګرامونو دورانولو کوشش کاوه.امير په دی تکل کی شو چه ددغو دواړو شخصيتونو اختلافات اوارکاندی خو وسه ئي ونه شوه .

مرحوم غبار بل ځای وائي امير عبدالرحمن خان د ډيورنډ دجبری امضاء نه بعد دانګريز خلاف خپل فعاليت ته زور ورکړ له

یوی خوا ئي سرحدی او قبایلی علاقو ته دعلماء و او کره مبلغینو په استولو لاس پوری کړ او ورسره دقبایلو دراپارولو او په هغوی باندی دوسلو او دارو مردکو دویشلو کارته زور ورکړ او داسی دقبایلو په ټوله سیمه کی هر هر چیری دمقاومت اور په غرغندو شو. دی حرکت یو خوا ته دانگریز خلاف مقاومت زیات کړ او له بلی لوری دقبایلو خلکو بیا امیر ته مخه او دبیعت لیکونو باران پری دهری خوا نه وریدل شروع شول. دی وائي چه په همدغه توده شیبه کی شیخ الافاغنه نجم الدین دشمال ختیځ نه او ملا پیونده وزیر دجنوب نه دګڼو نورو شخصیتو سره کابل ته دسلا مشوری دپاره څوك په پټه څوك په ښکاره لاړل او دنویو پلانونو او کومکونو سره بیرته خپلو خپلو مرکزونو ته ستانه شول.

مرحوم غبار دخپل تاریخ په یوه بله برخه کی لیکی چه په ۱۸۸۷ ( ۱۳۰۳ هـ ق ) کی [1] دبونیر نمایندګان کابل ته راغلل او دافغانستان امیر ته ئي داطاعت په ځرګندولو دانګریز دشړلو دپاره دامیر نه دکومك غوښتنه وکړه خو دیو دند معاهدې په وجه ظاهراً دامیر لا سونه تړلی و مګر په پټه ئي فعالیت جاری و او کوم اقدامات چه ئي په دغه ارتباط وکړل یو پکی ازاد قبایلو ته دفرار په عنوان دحضرت ملا نجم الدین لیږل و. حضرت نجم الدین دغه وخت په کابل کی تشریف لاره. ملامحمد میر ریزه کوهستانی چه دامیر خلاف کوم شدید عکس العمل وښود ګویا هغه دقضیئ دظاهر سره تعلق لری.

(۱) د ۱۸۸۷ م سنه صحیح نه ښکاری ځکه دیورنډ معاهده په ۱۸۹۳ کی دسخط شوی ده.

## دالینګار دجامع مسجد دمتولی بیان :

نه شوپوهیدی چه الینګار ته دحضرت نجم الهدی دتشریف راوړلو قطعی تاریخ څه دی؟ مګر دا دشك نه وتلی خبره ده چه دغه مبارکه هستی د ډیورند لاین دمعاهدی دمنځ ته راتلو نه پس الینګار ته راغلی وه . وایی کله چې امیر عبدالرحمن خان مړ کیده نو امیر حبیب الله خان ته یی وصیت وکړ چې اخونداده صاحب په ډیر عزت بیرته وطن ته راوغواړه او چې دانګریزانو په مقابل کی یی هر څه کول چې مخه یی و نه نیسی همغه و چې امیر حبیب الله خان دیوه فرمان په وسیله جناب اخونزاده صاحب دچړوبی او چمر کنډ څخه ( دقبایلو ) څخه راوباله او بیرته په ډیر عزت افغانستان ته راغی او خپل رسالت یي دانګریزانو په مقابل کی تر سره کړ.

صاحب چه الینګار ته تشریف راوړ نو بیا فقط یو وار افغانستان ته لاړ، همغه هم دامیر حبیب الله خان په بلنه خو اجل نور مهلت ورنه کړ او یو کال بعد ئی رحلت وفرمایه .

دمختلفو لیکنو ته داسی معلومیږی چه د پلوڅې په سیمه کی دصاحب دهستوږنی موده ډیره لنډه وه او دغلته دنورو خطراتو نه علاوه سیاسی مشکلات هم وو او لکه چه دغبار مرحوم دلیکنی نه څرګندیږی حضرت مولا نا نجم الدین دچړوبی ( دعیسی خیلو مو مندو دره ) دهستوګنی په دوران کی کله کله کابل ته تشریف وړی دی او که دا روایت صحیح وی نو بیا یو بل دلیل هم ددی خبری په باب لاس ته راغلی چه حضرت شړل شوی نه بلکه په سلا تللی و.

حضرت په الینګار کې ددعوت او ارشاد او تبلیغ سلسله جاري وساتله او دغلته ئی یو لوی جامع مسجد جوړ کړ. دمسجد دقوت او استحکام دپاره دا کافي ده چه سل کاله پس هم پخپل حال ودان وی او ته به وائی چه کلونه دجرګو او هنګامو او جهادی شعارونو د شور زوږ نه ډیر سترې شوی په یو عمیق او اسرار آمیز سلوك کې ډوب ولاړ دی.

یوراوی دچمرکنډ موقعیت نظاره او ماحول داسی تصویروی:
چمر کنډ ډیر ښکلی او دمزو ځای دی، دغره په سر کې دپاکو ، صافو اوبو چینه ده ، ژمی ګرمه او داوړی یخه وی، دچینی دپاسه یو ښه چنار ولاړدی. په خوا کې ئي دهډې ملا صاحب جومات دی دجومات خوا کې لنګر خانه او ځو کوټنی دی، خو کو ټنۍ تشی وی او څوك پکې نه و. اخوا یو کور دی خوا کې ئی یو څو میوه داری ونی دی، دغنمو یو پټی هم و ، دکور مخکې دکلو نو یو څو کیارۍ هم وی، زمونږ په ګرځیدو راګرځیدو دکور خاوند راووت دا دهډې ملا صاحب شیخ و، یواځې دلته اوسیده ، راغی مونږ ته ئي سترې مشی وکړه ، په جومات کې کښیناستو ، شیخ صاحب مونږ ته دهډې ملا صاحب دزمانی ټولې قصی وکړی چه دا ځای هغه څنګه اباد کړ او دهغه په وخت کې دلته خو مره ګرمجوشی وه ، دلرې لرې ځایونه نه به خلك دجمعی لمانځه دپاره راتلل، ملا صاحب یو غازی سړی و.

شیخ صاحب مونږ ته دهډې صاحب کرامات بیان کړل، دی دپیرنګی سره دمخالفت په وجه په خلکو کې ډیر منلی و. هډې صاحب دسوات صاحب مرید و او امیر عبدالرحمن خان دهډې نه

چمرکنډ ته شړلی و[1] خو دلته ئي ورسره دپیرنګی خلاف په غزاګانو کی پټه مرسته کوله . شیخ صاحب وویل چه دغزا په موقع به امیر عبدالرحمن خان ټوپك او کارتوس رالیږل.

## په مجلسي سطحه یو بل روایت :

مونږ مخکی دا خبره انشاء الله کړی ده چه دصاحب سره دامیر دارتباط وسیله مرحوم او مغفور سعید زیورشاه و هډی صاحب په جروبی کی دا و شهرت ئي بیخی انتهائي درجی ته رسیدلی و ډیر جنب و جوش و ، دکراماتو قصی دی، دخوارقو بیانیی وی دصاحب دناستی ولاړی سره عالمونه کښیناستل پاڅیدل او کرری وړی وړی غزاګانی دموندو په سیمه اجرا شوی وی په دغو غزاګانو کی دبادو باران دشدید طوفان راتګ او په ناګهانی ډول د ډمبرو مچیو حملی دکفار و دشکست خوړی خاطری وی چه اخر اخر د ډیورنډ دمعاهدی الی ګولی زور واخست لکه چه مونږ مخکی اشاره وکړه ځینی انقلابی (۱) تاریخ دانان ډیورند معاهده دامیر خلاف دنورو احساساتو نه دراولاړ شوی بغض او نفرت داظهار دپاره دیوی وسیلی په حیث استعمالوی مګر حقیقت دادی چه دوخت دتقاضا او دغه زمانه کی دمسلطو او صنا عو په پاملرنه امیر یواځی هغه شخص دی چه که په ټول جهان کی یواځنی سوپر پاور انګریز چه سل کاله مخکی ئي اوده سوه ملیونه نفوس دنګین لاندی و او په قلمرو کی ئي لمر نه ډوبیده

---

۱ــ دهډی نه چمر کنډ ته دصاحب دتګ روایت په دی شرط صحیح کیدی شی چه صاحب دجروبی دهستو ږنی په دوران کی دهډی مرکز هم ودان ساتلی وی.

دافغانستان نه ځینی ټوټی وشو کولی نو ده پخپل همت دملوك الطوایفی ختمولو او دافغانستان سره دنورستان او ځینو شمالی سیمو دیو ځای کولو په وسیله دغه نقصان جبیره کړ، په ریا ستی هندوستان کی دافغانستان نه غټ غټ ازاد ریاستونه و مگر څه شول؟ دملت مقاومت هم یو حد لری او دا حق هیڅوك هم نه لری چه په ورپی گیډه او تش لاس دیو ملت نه دنه ختمیدو نکی مقاومت تقاضا وکړی.

امیرعبدالرحمن چه د ډیورند دمعاهدی نه پس کوم رسمی خط انگریزانو ته لیکلی دی په هغه کی دی صفا وائي چه : دایو خنجر دی چه زما په قلب کی ننویستل شوی دی.

سر مارټیمر ډیورنډ پیرنگی دپخپل کتاب ( یادداشت های ډیورنډ ) کی لیکل چه " امیر دا خاصیت و چه ازاد کپ شپ ئي ډیر په زوره و ، دی اصلا یو جمهور سړی و خو چه کله به ده غوښتل چه یوه مقصد ی خبره کوله نو ځان به ئي راټول کړ، سنجیده او جدی به شو او په ورو به ئي خپل مخاطب ته په غوږ کی خبره وکړه.

ډیورنډ وائي دوزیرستان دکابل خیلو دعلا قی برمل په باب خبره وه چه کومی خواته ونیوله شی. امیر ویل چه بر تانیای عظمی به دغه وچ کړس ډاگ څه کاندی چه نه پکی ونی شته او نه اوبه ما وویل چه اعلحضرت ما دپاره دلیل وائي بریتانیای عظمی سره خو دودانو لو ډیر وسایل دی امیر صاحب په دغه بیدو لته سیمه کی څه لیدلی دی؟ نو دا وخت امیر ځان راغونډ کړ جدی شو او ما ته یي په غوږ کی وویل: زما قوم دی او زما وطن دی ."

د ډیورنډ معاهدی برخلاف چه یو خوانه په وزیر ستان کی یو داسی طوفان راپورته شو چه قریب قریب سل کاله وچلید او ملاپیونده ددین او پښتونولۍ لمر پکی دژوند تر اخره دوه لاسی توره وچلوله [1] نو په ختیځ شمال کی ئي هم یوالغاو تلفاو راپورته کړ او دپښتنو مجاهدینو او انګریزانو تر منځ دلسها و غزاګانو سبب شو.

په خفیه ډول دامیر دتدابیر و په جمله کی یو هم داو چه سید زیور شاه په حرکت کی راوستی شو او جړوبی ته دامیر دسختو تهدیواتو سره روان شو. هلته ئي دجمعی په ورځ دلمر دپاسه دزرګونو کسانو په مخکی دامیر تهدید او اخطار صاحب مبارك دهډی ته واوراو. امیر ویلی و چه ستاورانکاریو (١) او تحریکاتو زه نور پوزی ته راوستم او زما صبر ئي بالکل ختم کړ نو ته اوس ما ته ووایه چه : پا ځیړی او که درپسی درشم ؟

دا خبره څه وه چه یو انګور تنګور ئي جوړ کړ صاحب دمزید تاو تریخوالی دمخنیوی دپاره دخلکو ګنه ګونه خوره کړه او نیته ئي ورکړه چه په فلا نی ورځ به خبری کوو.

جناب سید زیور شاه صاحب ته په خلوتخانه کی دامیر دعا او سلام واوراوه او دامیر له خوائي ورته وویل چه د ډیورنډ لاین نه اخواته واوړه او دانګریز خلاف فعالیت لا پسی زیات کړه .

---

١ـ ملا پیونده دیو مستقل تالیف مستحق دی. خدای دی یو با فضیلته شخص موفق کړی چه دغازی ملا دغه قرض دټول پښتون قوم له خوا ادا کاندی. آمین.

دامیر دا قسم حرکات په جنوب او شمال کی دانگریزانو نه پټ نه دی او هغوی بیا بیا په امیر احتجاج کړی دی چه دا هر څه ستا دلاسه مگر دامیر کوم سند انگریزانو ته په لاس ورنه غی او امیر په کافی‌حدځان مضبوط کړی و لکه غبار مرحوم چه وائي، نو انگریزوچ په وچه دحملی جرئت نه شو کولی.

مومندو ته دجرګی په ټاکلی ورځ جناب مستطاب شیخ الا سلام نجم الدین دمخه ښی او خدای پا امانۍ یو درد انگیز تقریر وکړاو دمومند و داخلا ص ، جهادی جذبی، میړانی او دهډی صاحب په خدمت کی دهیڅ کسر نه پریښو دو ډیره ستاینه ئي وکړه .

مومندو صاحب ته وویل چه څو پوری مونږ کاملاً تباه شوی نه یو امیرتا ته ضرر نه شی رسولی. دهډی کامل ځوان په کامل حکمت جواب ورکړ: هو ! زه پوهیږم چه دامیر ټټوان دلته نشی راتلای خو که نجم الدین دامیر سره په جنگ شی نو بیابه لمونځ څنگه کوی او روژه به څنگه نیسی.

په څومره بلیغ انداز کی ئي قوم ته وویل چه دباغیانو لمونځ روژه نه کیږی؟ صاحب دخلکو اونرو ښځو په ژړا او انگو لاکی دجړوبی نه روان شو او خپل جاودان آثار جامع جومات ، لنگر خانه او چله خانه ئي ( چه اوس هم داکثرو مشاهدینو په ونیا خوشبو ئي تری خیژی) هلته پریښودل.

صاحب یو ځای بل ځای وګرځید آخر ئي عقابی او هد هدي نظرپه الینگار ( چمرکند)او دا ځای ئي خوښ کړ ځکه چه : دا ځای دمومندو او باجوړ منځکی پروت دی. دسرکاڼو او کونړ سره ئي پوله

لګیدلی ده. په جنګی لحاظ ډیر محفوظ دی. داروایت هم دا حقیقت تائییدوی چه دامیر او صاحب منځکی رازو او ددی راز پټ ساتل حتی ددوستانو نه پټ ساتل دوخت یوه اهمه تقاضا وه.

## زمونږ رایه :

زما توجیه ( والله اعلم) داده چه امکان لری دعلماء و روحانیونو او قومی مشرانو سره دامیر دچنګاویدو په وخت او دعملیاتو په لومړی مرحله کی هډی صاحب دګرفتاری نه دځان بچ کولو دپاره بی مصلحته او ناراضه وتلی وی.

دامیر او علماء و اوخوانینو اختلاف دمختلفو ملاحظاتو او وجو هوله کبله حتما واقع کیدونکی. امیر یو انضباطی شخص و ، هغه دمملکت دتنظیم دپاره پلان لاره چه دهغه دتطبیق په شروع کی دملوك الطوایف او دهغو قوتونو سره ټکر حتمی و چه په قوم کی دمحبوبیت له کبله او دقربیانو دسیاسی او اداری اړی ګړی په سبب چه په ملك کی موجود و او دوطن اداری لکه سل وهلی مریض ساه په سکنیدو اخسته دوی ډیر مغرور اوبی پروا و. دغه شخصیتونو چه مونږ یي مخکی ذکر وکړ یوه هم نه دامیر لوی حاکم نه واړه حاکم بلکه پخپله امیر نه هم اطاعت نه لاره. دغازی محمد جان خان له خوا په مجلس کی دامیر په مخ دچلم دلوګی نه د ډکی خولی وړپف کول او دعصمت الله جان بابا جبارخیل د" په شار اوړی بلاه اصطلاح دامیر په مقابل کی ددغو ملی معروفو او محبوبو شخصیتو دموقف یوه ښه نمونه ده. دصاحب مبارك له خوا په لومړی پړاو کی پلوشی غوره

کول چه دډکی او لعلپوری دیو جز، په ډول ښکاری هم ددی فکر مرسته کوی چه صاحب دغلته دڅان خلاصون او په عین زمان کی دارتباط په چارو کی داسانی خوندی کول په نظر کی نیولی و خوګویا نو یو او صناعو او احوالو به ددواړو خواو تر منځ دروابطو یو نوی فصل پرانستی دی. امیر دجناب هډی صاحب په باب دتشویش نه کاملاً په دی فارغ و چه هغه په جهاد اخته و، او په جهاد اخته زعیم یو قوت الظهر ته شدید احتیاج لری. دا دسید فضل اکبر باچا صاحب مرحوم مقوله ده چه ویل ئي: مونږ چه دانګریزانو سره په جهاد بوخت و دافغانستان اطاعت او کامل اعتماد حاصلول مونږ دپاره دوخت شدید ضروت و.

بل خوا که دتقوی تقاضا داوه چه دامیر سره دده په طرز اداره او دهغه دتنظیمی پلان په تطبیق کی همکاری باید ونه کړی شی نو دجهاد فی سبیل الله په لار کی دهمکاری، او پو په بل داعتماد کولو او په دی دوران کی دیو بل داستعداد داندازی لګولو په وسیله یو بل ته دزیات نژدیکت او اعتماد خو هیڅ شرعی یا اخلاقی او سیاسی مانع وجود نه لری او چنانچه دغسی وشول.

دیو مکتوب په حواله مونږ دخپلو لوستونکو په خدمت کی عرض کړی دی چه امیر په یوخاص محفل کی دخپل شاهی پټو ( چه کشمیری به و که چندولی؟ ) او دخپلی غاړی دتفنګچی تعارف هډی صاحب ته کوی. دا خو ددواړو منځکی دیو داسی عمیق تعارف او قرابت غمازی کوی چه دیر مراتب او مراحل پری تیرشوي دي .

پاتي شوي هغه تش دخو لي دغل غل ناري هغه دجاسو سانو دمخ اړولو دپاره وي او بیشکه چه دهر کمزوري دښمن د الارو ي چه ګوز ار کوي او لاسونه شاته نیسي .

هر وخت چه به په امیر باندي د مداخلت او دتحریك اعتراضونه دانکریز له خو ا ډیر شول یا دا چه ملاپیو نده، څپړی ملایا بل قبایل دیني مجاهد شخصیت به لمیر ته رجوع وکړه نو ده به یولوی دربار منعقد کړ او دا شخص یا اشخاص به ئي هم راوبلل او په دغه خپله جمهوره ادبی احتیاطه افاده به ئي شیطانانو زما او دبرتیانیایی عظمی په منځکی ګتی تکوئ خو تاسی خبر ته لرئ چه دا دوستی داسی نه ده چه ستاسی په شان ښیلی او وراتکاوی ورته ضرر ورسوی. بیا به ئي امنیتی موظفینو ته مخ واړاوه چه دوی فورا دسرحدنه بیرون کړئ او که بیا راغلل نو زنځیر زولا نه کي په سیاه چاه کی وغورځوئ. امنیتی مقاماتو به دغه خلك پاځول نو څه به ئي پری کول؟ اینډ کو ( دچهلستون ) قصر ته به ئي بو تلل هلته به ورته پسونه حلا ل و، دپلاوونو نه به تپونه ختل او دوخت دمیوو انبار به لګیدلی و. بیا به غازی نه : دغازیانو مشر سردار نصرالله خان ( امیر ځوی چه دحبیب الله خان په وخت هم دقبایلو دسیایی او پټو راوبطو مسئول و ) به ماسخوتن ورغی، ډوډۍ به ئي ورسره وخوړه ګپ شپ به ئي ورسره ولګاوه او بیا به ئي دروپواو وسلو نه ډك یخدانونه ورته په قچر وبار کړل او په ډیر قدر عزت به ئي رخصت کړل.

عین دغهٔ رویه دحبیب الله خان وه. حبیب الله خان په دې لاره کی ډیر امتیاز او حقوق لری چه پخپل محل کی به ورته انشاء الله څه

اشاره وکړو دمرحوم غبار او نورو بیشمارو مولفینو حتی پخپله دانګریزی مولفینو او بالاخره د ډیورند خپل آثار ددی حقیقت شاهد ی وائي چه امیر په ټولو ازاد و سرحدونو کی واعظان ، مغلتهو نه ، اشتهارونه خواره کړی او خورول او په دی وسیله کي د ډیورنډ لاین دتردیداو انګریز پرخلاف دجهاد حرکت ته شدت او قوت ورکاوه.
غلام حیدر څرخی یوسفزی چه د چا خبره دوهم امیرو او دامیر دمسلحو قواو عمومی قوماندان و دامیر په اشاره د ډیورنډ لاین مخالفت وکړ او په یوډك مجلس کی ئي چه انګریزان هم پکی ناست وو وویل چه امیر ددغسی تړون دتدوین او امضاء صلاحیت نه لری دټولو نه لویه واقعه چه په دی برخه کی وشوه هغه دانګریزانو ددی خبری کوشش و چه دناوی، چارمسنګ، مومند و او سالارزو غرونه د ډیورند دکرښی انګریزی لوری ته راشی چه دوی په دی وسیله چترال ته یو داسی سرك ننباسی چه په ژمی کی دواورو له کبله نه بندیږی.
سپهسالار څرخی ، هډی صاحب او عمرا خان دباجوړ ددی کوشش مقابله وکړه او هغه ئي ناکام کړ. ددی قسم ټولو خبرو رجحان دی خواته دی چه جاری اوضاع او احوال ټول ددی خبری او زمینی دمساعدت مرسته او تایید کوی چه دامیر او صاحب دهډی تر منځ باید راز او دمشترك هدف دپاره اشتراك مساعی موجود وی.
یوه ورستی پوښتنه داوه چه :
صاحب دمومندو علاقه ولی غوره کړه؟
هرکله که مونږ ددی قوم په تاریخ نظر واچوو نو ځینی داسی عوامل به په مخه راشی چه دهغو له مخه به مومندو ته د صاحب

لیږدیو طبیعی او مناسب اقدام وی.او له خبره داده چه دننګرهار داعماقونه واخله دصوبه سرحد تر اعماقو پوری مومند قوم دخپلو ذیلی او فرعی تشکیلاتو سره دمتعددو جغرافیائی او صافو او مشخصاتو سره پروت دی نو په دی لحاظ پکی دچلند او نفوذ کولو دپاره قدرتی اسانتیا وی موجود ی وی. بل دا چه مومند قوم کافی مهمان نواز او په پیرفقیر باندی مهربانه قوم دی نو دمجاهدینو او غازیانو داعاشی او اباتی مشکلات پکی نسبت نورو سیموته کم دی.

بله خبره داده چه دا قوم له قدیمه په دین ، سیاست او کلتور کی یواځی دلچسپی نه بلکه ډیر مهم رول لری. حسن میمندی (میوندی – مومندی) لومړنی مومند نه بلکه لومړنی افغان دی چه د مورخینو په اتفاق ئي د پښتو الفبا دمحمود غزنوی رحمت الله علیه په وخت کی ترتیب کړی ده. دحسن میمندی دعلم، فضل، سخا او تدبیر بیان یو لوی کتاب غواړی خو ښه داده چه دی دتعارف محتاج نه دی.

پخپله خوشال ختك دایمل خان د سپهسالارۍ او په سیاسی میدان کی دجنګی کارنامو تفصیل په ډیره دلچسپۍ بیانوی مورخین ایمل خان مومند دبادشاهانو په قطار کی حسابوی او لیکی چه په خرمن ئي ضرب وهلی و او په روپۍ به چلیده، رحمان او حمید دپښتو ادب په اسمان کی لمر او سپوږمۍ حیثیت لری او مولفین ئي په ثنا صفت نه مړیږی په شلم قرن کی مومندو دسیاست او حرب او ملکی اداری په میدان لوی لوی شخصیتونه لکه قاضی عطاء الله ، لکه محمد جان خان، لکه نایب سالار عبدالاحد خان او نور جامعی

ته وړاندی کړی دی.شیخ متی رحمت الله علیه ( په عامه سطح) دمومندو یو ډیر لوی روحانی شخصیت دی. پټه خزانه وائي:

شیخ متی چه خلیل و　　　　دی له آره لوی ولی و

دغه راز شیخ اسماعیل سړ بنی چه په مومندو کی ئي زیارت دی او په شیخ سمیل ( شیخ اسماعیل ) معروف دی ددویزو نیکه او لوی روحانی شخصیت دی. ددی قوم په خته کی دپیرنګی دشمنی اخبنستل شوی.ده او ددی خبری دپاره دا دری قوی سندو نه دی. یو دا چه دی قوم پخپل تصمیم او تکل بیشمار ډیرې غزاګانی دانګریزانو سره کړی دی چه شاید مثال یو محسود قوم وی او غالباً محسود دیرش یا یو دیرش غزاګانی او مومند نهو شیت یادیرش غزاګانی دخپلو صالحو اعمالو په دفتر کی ثبت کړی دی. انګریزان دهمدی دوه قومونو دتوری صفت کوی.

انګریزان پخپلو آثارو کی په دی حقیقت ډیر واضح اعتراف کوی چه مومند سړی یوی ګتی ته دجنګ په وخت کښیناست بیائي پلټن هم نه شی ولا ړ ولی.

دملك علیم عیسی خیل مومند نه دګنداو دروغی په جرګه کی ( ۱۹۳۶م) پیرنګی ګورنر پوښتنه وکړه چه یی کمبختو تاسی باندی دادومره توپی ټوپکی او مشینونه درخلاص شی چه مونږ وایو نوغی به ئي هم نه وی پاتی خو چه دوړه خوره شی تاسی لکه دسیسیې دبچو خړکی خړکی ثابت سلا مت را ښکاره شئ دا تاسی څه شی ته پټیږ ئي؟ علیم ملك دسپاندی بوټی ته لاس کړ یو څو

ځانګې ئې ترې راماتې کړې ویل ئې: مونږ خدای ساتي او دغه دسپاندې بوټې ته پټیږو.

بل خوا دافغانستان دلورې چه هر عالم دین یا شیخ طریقت مومند و ته دجهاد بلنه ورکړې ده نو دوې پکې نه نه ده کړې او جهاد ئې په هر قسم شرایطو کې په ډیر شوق کړې دی. دانګریزانو نه دمومند و دنفرت یو بل واضح ثبوت دادې چه په ټول انګریزې دور کې مومند رایفلل، مومند رجمنټ یا مومند بارډر او ملیشا اصطلاح وجود نه لرې. په ضلعي علاقه کې به کس نیم لکه شیخ محبوب علی یا کوم صاحب دانګریز دنوکرۍ حلقه په غاړه کړې وی خو دلته هم دمومندو حزبي او تنظیمي قرباني دیو سفزي غوندې لوی قوم دقربانۍ سره دمقایسې وړ ده.

همدغه سبب او البته نور سببونه دې چه مشایخو، علماء و، حتی سیاسي اشخاصو دهرې لورې نه (دافغانستان نه او دهندوستان نه) مومندو ته مخه کړې ده او دلته ئې قابل اطمینان پناه او دخپل جهاد یا تحریك د پاره موقع موندلې ده. دا خبره خو به مونږ وروسته انشاء الله په تفصیل سره کوو خو مجملاً دلته هم دومره وایو چه پښتون عام طور کنزرویټو (محافظه کار) مګر مومند قوم په دې برخه کې زیات محتاط دې نو ځکه دوې دمرحوم سید احمد شهید او مولنا محمد اسماعیل شهید او په بل عبارت د ۱۸۵۷ کال دانګریز خلاف دجهاد دتحریك په ټوله سلسله کې (دپاکستان تر جوړیدو پورې) تعاون ونه کړ او دچمر کند مجاهدین دغو مره منزوی او جدا پاتې شول چه دناوګۍ او کوهي خانزادګانو دسیمو او سیدونکو ته هم

ددوی دژوند ژواك او مقصد څه پته نه وه او ددی علت فقط دا و چه دا تحريك لکه علامه جمال الدين افغانی چه وائي په وهابيت بناو ، وهابيت کی دتقليد او طريقت دپاره هيڅ ګنجايش نه شته او دپښتنو جهاد ټول ددين او مذهب په مرسته او حمايت کی و.

همدغه سبب دی چه ددغه تحريك پيروان روحانی مشرانو مخصوصا سوات صاحب رحمت الله عليه ته کنځل کوی او دجهل نسبت ورته کوی. تفصيل به اميد دی چه وروسته راشی. هډی صاحب عليه الرحمه په مومندو کی ډيره شو، حضرت رئيس المجاهدين حاجی صاحب دترنګزو په مومندو کی ډيره شو. دسرکانو ميا صاحب دبتخاك حضرت صاحب . پاچا صاحب و اسلام پور، تيرګړو پاچا صاحب، استاد صاحب ، صوفی صاحب، بارګام حاجی صاحب ، ملاصاحب دچکنپور، شګی ملا صاحب او په لسهاو نورو صاحبانو مومند دجهاد دلښکر په حيث انتخاب کړل. مګر ددی ټولونه زياته مهم خبره داده چه دټاکوری فقير ( دالينګار فقير) هم په مومندو کی ځای ونيو، بابړی ملا صاحب دمومندو په سيمه کی تر مرګه پوری دجهاد تحريك جاری وساته حال داچه دهغوی ټولو دخپلو سيمو په ګاونډ کی مواقع برابر او زمينی مساعدی دی.

اميد دی چه محترم لوستونکی به قناعت وکړی چه مومندو ته داساسی سکونت يا موقت رهايش خبره دجهاد د تنظيم يو اساسی رکن و، دا دمشايخو او علماء و سنت و چه نجم الاسلام والمسلمين هم ځان مستثنی ونه باله او دغلته ئي يو بنياد کښيښود هغه داسلام او افغانستان دپاره دجهاد بنياد و هغه دلته يو داسی مثال بل کړ او

بل ئي پريښود چه ځلوېښت پنځوس کاله ئي په نور باندی افغانستان او ګاونډي سيمي رڼا وی.

یك چراغیست درین خانه که در پر تو آن
هر کجا می نگری انجمنی ساخته اند

دحضرت دشاګردانو او خليفه ګانو وار په وار انجمن او دحضرت دپيربهايانو (هم سبقو) انجمنونه لکه د خليل خويزی رحمت الله عليه انجمن او لکه د بيدمنۍ دحاجی صاحب دزهد او تقوی او ارشاد او تبليغ په انوارو نورانی او مجهز انجمن چه آثار ئي کاملا تازه دی او دقافلی دهدايت دمشالونو کار به ورکولی .

ان آثار نا تدل علینا
فانظو ا بعدنا الی الا ثار

## دملکنډ غزا:

دانګريزانو سره دصاحب د ډيرو مقابلو او غزاګانو ذکر په محلی او مجلسی سطحه موجود دی خو په کتابونو کی ئي ذکرنه موندل کيږی.دعمراخان دباجوړ دحرکت سره په دير جندول او سوات کی د جهاد يوه قوی هنګامه منځ ته راغله، ددينه مخکی دسوارکاوی او امبيلی غزاګانی دی چه سوات صاحب عليه الرحمه پکی شريك شوی دی خو دهډی صاحب دپاره دغه زمانه د هلکولۍ او طالب العلمی زمانه وه دصاحب هډه مرشد او استاذ د سيد و غوث حضرت عبدالغفور په ١٨٧٧م (١٢٩٥ ه ق ) کی وفات شوی دی، ددوی په مصاحبت اورکاب کی هډو دهډی صاحب دفعاليت او

نقش څه ذکر نه شته ، هلکولی وه . په تحصیل مشغول و. په چله بوخت و هر څه چه و مګر ددوی دکردار څه لیکلی اسناد او مدارك ( زما د پلټنې ددایری مطابق ) نه موندل کیږی شفاهی طور دا خبری په مجلسونو کی اوری را اوړی چه دی په صاحب ډیر ګران و داسی لکه حضرت امیر کلال ته خواجه نقشبند یا لکه حضرت باقی بالله ته حضرت شیخ احمد کابلی هم سرهندی( سهرندی) یا لکه مرزا مظهر جانان ته قاضی ثناء الله پانی پتی چه وائي:

اگر روز حشر پرسند که مرزا چه اوردی؟ من قاضی ثناء الله پانی پتی را عرضه خواهم داشت.

دغسی هډی صاحب دسوات صاحب په سترګو کی خوږ او په زړه کی سکه و. په لمانځه کی به ئي مخکی کاوه . دی یو پاکیزه او نیك اخلاقه متواضع ځوان و او دپیر به ئي دغو مره ادب کاوه چه دسیدو په کلی او نژدی فنا کی ئي نه او دس مات کړی او نه ئي خپلئ پنی پښو کړی دی. عین دغه کار د بیدمنی حاجی صاحب چه دده نه مشر و بلکه غالباً دصاحب سوات مشر ماذون و هم کړی دی.

دا مبیلی او سور کاوئ په غزاګانو کی په ۱۸۶۳ م کی صاحب سوات شخصاً شریك شوی دی او په حقیقت کیدد غو غزاګانو روح و روان هم پاتی شوی دی. دحضرت نجم المله والدین دتولد صحیه پته نه لګی چه مونږ دا اټکل کړی وای چه دغه وخت به حضرت دڅه عمر و؟ او ایا دوی په په غزاګانو کی دعملی برخی اخستو جوګه و که نه حتی دا هم نه شو ویلای چه په دغه وخت یعنی ۱۸۶۳ کی ده دخپل مرشد نه لاس نیوه کړی وه که نه ؟

حضرت صاحب سوات داکبر خان غازی سره دامیر دوست محمد خان په بلنه دهری سینکهه په جنگ کی ( ۱۸۵۰م ) شریك شوی او یو لوی لښکر ئي هم له خپله پلوه دجنګ میدان ته کوز کړی دی خو دننگرهار یا قبایلو دشخصیتونو څه ذکر په دغه برخه کی نه شته. البته سعادت خان لعلپوری مور چه خیل مومند چه دسوات صاحب یو منلی او مخلص مرید و دسورکاوی او امبیلی ( ۱۸٦۳م ) په غزاګانو کی شخصاً شریك شوی دی. دپیر دوفات نه ډیره موده بعد ( ۱۸۷۷- ۱۸۹۵ ) په اول ځل د صاحب هډه مبارك نوم مونږ په ۱۸۹۵ کی دملکنډ په غزاکی وینو.

جنرل چمبر لین مشهور انګریز سیاستمدار او دبر یتانیا صدراعظم دسورکاوی او امبیلی په غزاګانو کی د انګریزی لښکر قیادت کړی دی، دغلته سخت ټپی شوی دی او دعلاج دپاره دمحاذ نه ستون شوی دی. په ۱۸۹۵م والا ملکنډی غزاکی سرولنسټن چرمیل دغربی دنیا تر ټولو معروف او جرار سیاستمدار چه دری شپیته کاله دهاوس آف کامن ( ولسی جرګی) غړی پاتی شوی دی او څو واری صدراعظم منتخب شوی دی په دی غزاکی دیو ځوان ضابط په څیر دعسکری خبرنګار او ریپورټر په حیث وظیفه اجرا کړی ده دی پخپله وائي چه دی جنګ کی یو ځل دمرګ دقطعی خطر سره مخامخ شوی دی.

دچکدری د پلهٔ دجنوبی اړخ دسرګی دپاسه یو پیکټ دی په هغه لیکلی دی: چرچیل پیکټ ۱۸۹۵. انګریزانو ته د پښتنو او خاصکر قبایلو سره د مقابلی په میدان کی د ګور یلا جنګونو کشف

او معلومات وشو. مونږ مخکی دعلیم ملك سره د پیرنگی گورنر سوال و جواب درج کړی دی. انگریزانو په دی کشف ډیر تعجب وکړ او پخپلو جنگی او عسکری مشقونو کی ئي باقاعده طور دگوریلا جنگ او طور طریقه مشقونه داخل کړل. په همدی سبب دا یو بل عجیبه تصمیم انگریزانو ونیو چه دهند په خاوره دموطفو صاحب منصابانو د ترفیع شرط په قبایلو کی دترفیع دیوی دوری د.مودی په اندازه خدمت کول وټاکل شول.

په دی غزا کی دهډی صاحب رحمه الله علیه گډون او دچکدری په قلا باندی دهډی صاحب سره دراغلی لښکر ورختل او هغه تالا کول چه دانگریزانو دمحاصری نه دعمرا خان نواب دورور دخلا صون سبب هم شو تاریخ نویسانو په دقت قید کړي دی. ددی غزا یوه ډیره مبارکه خاطره دترنگزو دحاجی صاحب گډون دی په دی غزاکی سعادت خان غازی مور چه خیل مومند هم دخپل لښکر سره شریك شوی دی.

د"حاجی صاحب ترنگزئي" نومی کتاب لیکوانکی عزیز جاوید یو ځای وائي چه همدغه غزاکی ددواړو صاحبانو یو بل سره سترگی وشوی او ترنگزو حاجی صاحب چه تر دغه وخته دیو صحیح مرشد دانتخاب دپاره دمطالعی په دوره کی و دهډی صاحب سره بیعت وکړ، بل ځای په همدی کتاب کی دا خبره هم کوی چه ترنگزو حاجی صاحب دبیعت دپاره هډی ته لاړ - مگر تر څه حده چه مونږ ته معلومه ده حاجی صاحب دامیر عبدالرحمن خان په ژوند د چمر کند نه افغانستان ته نه دی تللی. کیدی شی چه حاجی صاحب په ۱۹۰۱

یعنی دعبدالرحمن خان دمرګ په کال دخپل پیر دسالا نه ملاقات یا داستقاضی دا خیر و مراحلو دتکمیل دپاره دپیر په حضور د تشریف په غرض جلال آباد ته تللی وی. ځکه چه ددی کال نه مخکی خو هغه په چمر کند کی تشریف لاره او چه امیر وفات شو نو دهغه ځوی حبیب الله خان هډی صاحب دخپل ضرورت په وجه دی افغانستان ته وباله، ډیر اعزاز او اکرام ئي وشو خو عمر و فا و نه کړه او په ۱۹۰۲ کی وفات شو.

دا هم کیدی شی چه که حاجی صاحب مبارك جلال آباد ته تللی وی نو مراد به ئي دخپل پیر په فاتحه کی ګډون او دجناب صوفی عالم ګل صاحب نه دطریقت او لاس نیوی تجدید وی. په قبایلو او سرحدی صوبه کی ددی دواړو عظیمو شخصیتونو ټینګ روابط او تړون ډیر واضح او مشهور دی مګر په ننګرهار کی دچکنور ملا صاحب سرګانو میا صاحب یا صوفی صاحب په شان دحاجی صاحب او هډی صاحب دروابطو څه درك نه لګیږی. البته څه وخت چه مغفور او مرحوم حاجی محمد امین عاشق او مداح رسول چه یوستر مصلح او مجاهد شخص و ننګرهار ته راغی او چونکه دی دحاجی صاحب دترنګزو ماذون او خلیفه و او دافغانستان په حکومت کی دباچا ګل صاحب مرتبه او دبد به دیو وزیر نه پورته وه او حاجی صاحب للمه هډه د خپل مرکز په حیث غوره کړه نو دار شته ژوندی او تازه شوه . څه قدر ته خو داصل خبرپی نه لر ی لاړو خو هوښیاران وائي چه خبره دخبری نه پیدا کیږی نو دمعافی امید لرو انګریزانو په دغه غزاکی ماتی وخوړه ، یو څه موده قلاری وه خو اصل کی دا

قلاری نه ده تیاری وه . په ۱۸۹۷ کی حضرت ملا سعدالله (سرتور فقیر) دملکنډ دبلی غزا تیاری مکمل کړ په دی غزا کی هم داسلام دی دواړو سپهسالارانو (هډی صاحب ترنګزو حاجی صاحب) دخپلو خپلو لښکر و سره په جوش خروش ګډون وکړ. خان اعظم سعادت خان غازی مور چه خیل مو مند بیا دخپل پیر بهائي هډی صاحب په څنګ کی ولاړ دی دا ځل انګریزانو ته یوه سخته او شرمناکه ماتی پیښه شوه او مجبور ئي عقب نشینی وکړ. دانګریزا دعقب نشینی صرف یوه لار خلا صه وه او هغه دباجوړ خوا وه ځکه چه دملکنډ خوا خو دمجاهدینو په لاس کی وه انګریز باجوړ ته واوښت او دباجوړ ټولو اقوامو پرې غورځی او یرغل وکړ. دباجوړ غزا ته انګریزانو دیو ډیر شدید تاریخی جنګ نوم ورکړی دی او لاس په لاس دتورو او برچو ګوزارونه شوی دی.

دا پته نه لګی چه هډی صاحب مبارك او دهغه ملګری په دغه غزاکی جنګیدلی دی او که نه مساعد فرصت ئي نه دی موندلی. انګریزانو خپلی عقب نشینۍ ته دوام ورکړ او دناوګۍ نه مخ دغنم شاه او سړی خوا تر څنګه دبیدمنی په لار شمشا ته واوښتل خو دمومندو په علا قه کی نه دوی غرض کړی دی او نه مجاهدینو زمونږ د مشرانو وینا ده (والله اعلم بالصواب) چه انګریزان نیمه شپه دبید منی نه وکوچیدل او مخ په پېښور ئي خپل سفر جاری وساته.

ذا وروستی قسمت کوم تحریری سند نه لری مګر دهډی صاحب خلاف په جړوبی باندی مسلسلی حملی او دا دبید منۍ په لار دپیرنګی راختل یو متواتر روایت دی. والله اعلم باصواب.

## دډیرۍ غزا:

دهډې صاحب دجهادي او تنظیمي فعالیت دعروج یادګار د ډیرۍ غزا ده . کتابونو کې دا د شبقدر په نامه ځکه یادیږي چه یو خو شبقدر لوی کلی بلکه وروسته دیوی علاقې نوم شوی دی بله خبره دا ده چه د ډیرۍ پوره نوم د سیکورډیرۍ ده نو له دی کبله هم ځوك دا نوم نه خوښوي خو په ولس کې داغزا ځکه د ډیرۍ په نوم یادیږي چه د ډیرۍ پازار ته مجاهدینو ننوتل او دا ځای ئي فتحه کړ.
هر څو که ددې سلسلې په لسهاو غزاګانې دمومند و په نامه یادیږي او بیشکه چه اکثریت پکې دمومندو دی مګر دګاونډې قبایلو او دافغانستان دکونړ او ننګرهار ولسونو په ډیره دلچسپي په دغو غزاګانو کې دمال او سر په ښندنه برخه اخستې ده او ډیرې جنازې دمومندو ګاونډیو سیمو ته دجنګ ځایونه تللي دي.

دسر تور فقیر په نامه د ملکنډ غزاده دباجوړ غزاګانې دچرچیل پیرنګې په ګډون په ۱۸۹۷ م کې وې او د ډیرۍ دا معروفه غزا چه پیرنګې ته ئي ډیر تاوان واړاوه او هنګامې ئي تر لرې پورې خورې شوې.

په ۱۸۹۷ کې دوه غزاګانې شوې دي یوه په ډیرۍ او بله په سوربیاند (چه دسرخرود معنی ورکوي) دا دواړه ځایونه یو بل ته ډیر نژدې پراته دي او دواړه دشبقدر په احاطه کې واقع دي دواجان (خوړا خیل مومند) په دغه دوهمه غزا کې شهید شو . دولسي روایت مطابق دوا جان په یو زاړه قبر کې پټ و او انګریزی ټوپك او ډیر کارتوس ورسره و. دانګریزی رسالې دسپرو دوړه خوره وه دواجان

به یو پیرنگی په شیش کی راوسته او ویشته به ئي. بیشمار سواره ئي په زمکه رانسکور کړل اخر د ډیر تلاش نه پس معلومه شوه چه یو غازی په دغه زاړه قبر کی پټ دی. پیرنگیانو رساله په دغه زاړه قبر وروخیژوله قبر ئي پری دپاسه اور کړ او ډیر وخت پری اسونه دپاسه گرځیدل. په دی ډول د دواجان نوی قبر جوړ شو او دی پخپلو جامو کی دخپلی وسلی سره دفن شو. مومند و جینکو په ډیره موده دا ټپه کوله .

میندو په څه خواری لوی کړی
هډی صاحب ئي په ډیری تمامونه

## دهډی صاحب نقش:

یواځی دانه چه هډی صاحب دجنگ په میدان کی انگریزان لالهانده او سروهلی بروهلی ساتلی و بلکه دسوات کوهستان نه نیولی تر پشینه ( پشینگ – بوشنگ – فوشنج ) پوری یوه عظیم الشانه سلسله دده په سعی او برکت منځ ته راغلی وه چه په سیاسی ، تنظیمی او جنگی اړخونو کی ئي دانگریز مقابله کوله او هر هر ځای ورته سور اور و.

راځي چه دیو تاریخ لیکونکو نظر دهډی صاحب په باب مطالعه کړو:

## دمولانا غلام رسول مهر نظر:

مولا نا غلام رسول مهر (په غالب احتمال) یووهابی ذهنیت دی مگر دمطالعی او خبرت دیوی او چتی پائی لرلو په وجه دده رایه

همیشه وزنداره وی او دی موقعیت دده نوم په مولفینو کی لوړ ساتل دی. دی وائي : " امیر عبدالرحمن خان د ډیورند لاین منلوته تیار نه و خو هغه دانګریز مقابلی ته هم زړه نه شو ټینګولی نو اخر هغه دمجبورۍ نه په دغه لوظنامه دسخط وکړ او دلوظنامی دلا سلیك نه بعد چه انګریزانو په بریدو نو باندی دځلو جوړو لو کارته لاس واچاوه نو په ټول سرحد کی هر هر چیری خلك راوپارید. علماء و په قبایلو کی دا تبلیغ شروع کړ چه پیرنګینانو د هندوستان نه بهر خپل مقصدونه حاصل کړل اوس نو انګریز لکه دښامار دقبایلو دازادی سیمی نه راتاو شو نورنو دقبایلو دازادی خیر نه شته او دانګریزانو دا پروګرام دی چه دقبایلو په څټو نو سواره شی دملکنډ د ۹۷- ۱۹۹۸ م غزا لوی سبب همدغه هیجان او اضطراب و ، سرتور فقیر ( ملا سعدالله ) دبونیر نه راپورته شو او په علاقه کی ئي اوربل کړ او هډی ملاصاحب خودی خیر یوسی په مومندو ، باجوړ ، تیراه او وزیرستان کی ئي دانګریز خلاف په لکو نو مسلمانان راوپارول او هر هر ځای غازیان په ډول سورنی دجنګ میدان ته راکوز شول چه دنیو یل پیرنګی دوینا مطابق په علاقه کی دپیرنګی دهستو ړنی په تاریخ کی دا د ټولو نه خوفناك کال و.

مولانا مهر وائي: هډی ملا هغه غیرتی شاه زلمی و چه دخپل ژوند دوروستۍ سلګۍ پوری ئي دانګریز خلاف دجهاد شغلو ته تقویت ورکړ. دی پخپله دسوات صاحب رحمت الله عیله مرید و خو دده په حلقه کی دترنګزو حاجی صاحب او سنډاکد ملا صاحب غوندی داسلام پهلوانان موجود وو ددغو حضراتو د تدابیر و متعلق

دخلکو هر څه رایه چه وی[1] خو حقیقت دادی چه ددوی دغیرت اواسلامی جمعیت په باره کی هیڅ شك و شبهه نه شی کیدی. مولانا غلام رسول مهر پخپل کتاب سرگذشت مجاهدین کی یو بل ځای وائي: دسپیڅلتیا او خلوص له درکه دسرحد دعلماء و او مجاهدینو تر منځ دهډی ملا صاحب چه ملا نجم الدین اخندزاده نومیږی داوچت مقام خاوند دی دی یو لوی دینی عالم و . په طریقت او مشیخت کی لوړو درجو ته رسیدلی و او یواځی په قبایلی سیمو کښی نه بلکه دننگرهار په دورکی د ډیر وسیع اثر او رسوخ څښتن و.

دانگریزی اقتدار په باب دده نظردغسی نظرو چه دمجاهدینو جماعت دزمانو راهیسی پری عمل کاوه . په ۱۸۹۵ کی انگریزانو په قبایلو حمله وکړه هډی ملا لکه دغره غوندی ورته په مخکی ودرید. هډی ملا صاحب دقبایلو دازادی دحفاظت په لاره کی یوه دقیقه غفلت هم ونه کړ او دخپل ژوند هر هره لمحه ئي ددغه مقصد دپاره وقف وساتله رحمة الله علیه رحمع واسعة.



---

۱ـ مولانا صاحب غلام رسول مهر په دی کنایه کی دوهابیت له کبله دستانی او چمر کند دمجاهدینو سره دسوات صاحب او دهغه دخیلی مخالف ته اشاره ده. همدغه وروستنی دوه تکی به مونږ دستانی او چمر کند دمجاهدینو په باب استعمالوو یعنی عقیدی ئي هر څه چه دی خو په اسلامی جمعیت کی ئي شك نشته

## دغازی عبدالکریم چمرکنډی رایه :

دا یو نهایت سپیڅلی مجاهد دی. خیر دی که وهابی وی. ټول عمر ئي په جهاد کی په لوړه تنده په سختو سوختو کی تیر کړی دی. په افغانستان کی دننه او دافغانستان په ګاونډ ئي دخپل اوږده عمر تیرولو په وجه دی بالکل یوبا سویه مومند یا یو رتبه دار ننګرهاری ښکاری. بی تکلفه دکابل خبری کوی. په شخصیتونو تبصری کوی. سرګذشتونه بیانوی او کله کله دغسی خبری هم کوی چه دجامعی دعامو خلکو دپاره اسرار بلل کیږی خو چونکه دچمرکند مجاهدین په افغانستان کی د بیحده عزت او احترام برخور دارو نو دوی داکثرو رازونو نه خبر دار وو. دی دهډی صاحب په باب پخپل سرګذشت مجاهد نومی کتاب کی چه محمّد حامد نومی لیکونکی ترتیب کړی دی وائي: حضرت دهډی صاحب په خدای او رسول یو صادق مین او غازی میړه تیر شوی دی، دد دسوات صاحب نه لاس نیوه وکړه څوك چه دیاغستان ( قبایلی علاقی) په شمالی‌سیمه یوه نامداره هستی بلل کیږی او په لکونو مریدان ئي لرلی دی.

دده په لکونو مریدانو کی دغه دوه شخصیتونه یو هډی صاحب چه په مشرقی افغانستان کی او دسوات صاحب نه پس په ټوله قبایلی علا قه کی روحانی پیشوا منل کیده او په صوبه سرحد کی مانکی ملا صاحب منل شوی دی.

دهډی صاحب یو نومیالی مرید دسرخرود په چارباغ کی تیر شوی دی چه نوم محمد سعید جان و په چار باغ حضرت صاحب

مشهور و او مالیدلی و. دغسی یو بل بزرګ شخصیت سرکانو میا صاحب دده مریدو. دهډی استاد صاحب، دا الی خیلو ملا صاحب، دترنګزو حاجی صاحب او چکنور ملا صاحب، شګی ملا صاحب او صاحبزاده ، دصاحب دهډی په معروفو خلیفه ګانو کی حساب دی او دوی ټول لکه دخپل مرشد دپیرنګی په دشمنی کی او لوالعزم مجاهدین بلل کیږی.

یوبل ځای وائي چه زه او مولانا بشیر ( دچمر کند دمجاهدینو رئیس چه شهید کړی شو) دچارباغ حضرت صاحب ملاقات ته لاړو . چارباغ دسرخرود پلو په لوی سرك ( هغه وخت ددورنتی لارنه وه ) څو کیلو متره کی پروت دی. دا صاحب دهډی ملا صاحب منلی ماذون و ، دهډی صاحب په غیاب کی دځو مرکز و نو له خوا دصاحب دپروګرام دتکمیل او تطبیق کو ششونه جاری وو او ددغو مرکزونو مشران دهډی صاحب رحمت الله علیه په وجه متبرك ګڼل کیدل. مونږ دواړه یو ځل داستاذ صاحب لیدو له هم هډی ته لاړو استاذ صاحب یو ډیر موثر شخص بلل کیده او ځینو خلکو ئي ماته کرامتونه هم بیان کړی. یو څو کسانو داهم وویل چه دبنګو او افیون عملیان وخو داستاذ صاحب مبارك په دعا سره خدای ددغه بدعمل نه خلاص کړو.

## دعزیز جاوید رایه :

عزیز جاوید په جناب شیخ الا فاغنه حضرت حاجی صاحب ترنګزائي باندی یو سملاسی او دمنډی له مخی یو کتاب لیکی دی چه په رطب او یا بس او تضاداتو او غلط بیانیو مشتمل دی خو بیا

هم چونکه بازار ته راوتلی یو کتاب دی نو اشاره او التفات به ورته مناسب وی. دی دهډی صاحب دذکر په مناسبت او موقع وائي:

په سرحد کی د پیرنګیانو او عمرا خان نواب دباجوړ مځکی جنګ ونښت نو دافغانستان او سرحدی سیمو نه خلك ورته راروان شول چه په هغو کی دچار سدی دترنګزو حضرت فضل واحد چه ترنګزو حاجی صاحب معروف و هم د هشنغر دځوانانو په قیادت په دی جنګ کی شامل شو. دافغانستان دننګرهار[1] دعلاقی نه حضرت نجم الدین چه په هډی ملا مشهور و دخپلو مریدانو او پیروانو سره په جهاد شامل شو. دی وړاندی وائي چه :

دجنګ په دوران کی به چه کومی مشوری او جرګی کیدی هډی صاحب او ترنګزو حاجی صاحب دواړه پکی شریك وو. دهډی صاحب علیه الرحمه او حضرت حاجی صاحب دترنګزو منځکی ډیر خصوصی تعلقات و او دغو تعلقاتو له برکته خو ترنګزو حاجی صاحب دهډی صاحب نه طریقه هم کړی وه .

ښاغلی جاویدبل ځای وائي:

دهندوستان دلویو لویو سیاسی لیډر انو سره لکه د مولا نا محمد علی، مولا نا شوکت علی، حکیم اجمل خان، داکټر مختار احمد ، مولا نا ابوالکلام ازاد مولانا حسرت موهانی، چودهری رحمت علی او نور دسرحد دنومیالو روحانی رهنمایانو مولانا نجم الدین

---

١_ آیا هډی صاحب دعبدالرحمن خان دسلطنت په پنځلسم کال هم په هډه (افغانستان کی و)؟

معروف په هډې ملا صاحب او دهغه خلیفه حاجی صاحب دترنگزو، سنډاکی ملا صاحب غازی علی عباس بخاری، قاضی عبدالولی او دترنگزو حاجی صاحب دگنو مجاهدو پیروانو د (ستانی) دمجاهدینو دمرکز سره پخه رابطه جوړه شوی وه او چه کله دهندوستان نه دمجاهدینو گروپونه سرحد ته راتلل شروع شول نو دهډې ملا صاحب او دترنگزو حاجی صاحب او دمومندو دعلاقې دعلماء او مشایخو په مرسته په ۱۹۰۲ (۱۳۱۹ هـ ق) کی په سمخ (بونیر) کی دیو داسی مرکز بنیاد ایښودل شوی و چه په هر لحاظ ئي دمجاهدینو دپاره دیو اهم فوجی مرکز حیثیت لاره.

دمحترم لوستونکو په توجه کی یو داټکی ورکول غواړو چه دمرحوم سید احمد شهید دتحریك مرسته کړی په مختلفو طریقو دا کوشش کوی چه دحنفی مشایخو او بالخصوص افغانی مشایخو او دستانی او سمخی او چمر کنډ دمجاهدینو تر منځ دهمکاری او وحدت نظر روحیه تلقین کاندی او په صوبه سرحدکی چی حنفیانو " مشایخ دی که علماء دی او که قومی مشران " څو مره مخالفت او مقابله کړی او بالا خره په عملی طور دا تحریك دصوبه سرحدنه ویستلی‌دی هغی ته دپښور دسردارانو چه ددوست محمد خان ورونه او یارمحمد خان او سلطان محمد خان نومیږی داقتدار خواهی او دکفارو دجوټه خوری رنگ ورکړی خو دا دشکو پری چه څومره ډیر ځینو مذهبی او ځینو سیاسی متعصبو او لالچی لیکو الوغښتی دی نو هغه هیڅکله هم ټینگ شوی نه دی او هباءً منشوراگرځیدلی دی.

حقیقت دادی چه دامبیلی او سور کاوی د( ۱۸۶۳ م ) جنګونو نه پرته حنفیانو چری هم دسیداحمد شهید دتحریك مرسته نه ده کړی. د امبیلی او سور کاوی دجهاد دتیاری په وخت دسمځو او ستانی دمجا هدینو امیر مولا نا صاحب عبدالله سوات صاحب ته مخامخ زنګون په زنګون کښنیاست او ورته وئي ویل: سوات صاحبه زه خواهش کوم چه دجنګ شروع کیدو نه مخکی زما په عقایدو ځان خبر کړ ئي . او بیا ئي ورته دخپل حنفیت او تقلید ټینګ اطمینان ورکړ چه په نتیجه کی سوات صاحب (رح) هغه په غیږ کی ونیو او ورته وئي ویل زما او ستا هیڅ اختلاف نه شته .

ددی جنګ نه وروسته ورو ورو دمجاهدینو له خوا دسلفیت یعنی وهابیت حرکت په ظهور چی راغی او دکوټهِ ملا صاحب سید امیر مشهوره ماجرا منځ ته راغله او په دی صورت دهمیشه دپاره داحنافو او ستانی والا و صفونه یو دبل نه بیل شول. هیڅ سند وجود نه لری چه ترنګزو حاجی صاحب دی دچمرکندیا ستانی دمجاهدینو سره مرسته کړی وی یا دی ئي ورسره مشترك پروګرام تطبیق کړی وی. آیا داضافو دا مشایخ دیته تیار یدلی شول چه دتقلید او مشیخت برخلاف چه هغه ددوی خپل مسلك دی دچا سره کومك وکړی؟ دعزیز صاحب په کتاب کی یا نور اثارو کی دچمر کند دمجاهدینو سره دجناب مشر باچا ګل صاحب دناستی ولاړی یا مثلا دمولا نا بشیر دشهادت په مناسبت دباچا ګل له خوا په ( ۲۴۰) افغانیِ دیوی قلبی خیراتول او دتعزیت مجلس جوړول دمشیخت ددایری لا ندی نه بلکه دافغانستان دحکومت دنظرئي مطابق

دسیاست په حلقه کی دننه بلل کیږی. دهډی صاحب او دهغه دماذونانو په نامه د بیشمارو جهادونو په دوران کی تاسو دچمر کند یا دسمڅی یادستانی دمجاهدینو ذکرِ او نوم اوریدلی دی؟

عزیز صاحب چه دترنګزو حاجی صاحب په ستاینه او توصیف کی کتاب لیکی وائي چه " دترنګزو حاجی صاحب دسید احمد شهید دمشن دتکمیل دپاره دا ټول جدو جهد کړی دی. آیا حاجی صاحب دسید احمد شهید دهغه مشن دتکمیل دپاره خپل ټول عمر خاوری ایری کړی دی او مخلوق دخدای ئي کلونه کلونه په اور اړولی را اړولی دی چه دسرحد دسلو نه زیاتو علماء و او مشایخو دهغه خلاف فتوی ورکړی ده او په دغو مفتیانو کی حافظ دراز پشاوری ( عرف حافظ صاحب عمرزائي) هم شامل دی څوك چه دبخاری شریف یو معروف شارح دی او شرحه ئي په هیڅ وجه دعمده القاری او فتح الباری نه کمه نه ده. که دچا سودا وی نو په بازار کی موندل کیږی او په ډیره روانه فارسی لیکل شوی ده .

عزیز جاوید صاحب دی لطفا توجه وکړی چه حافظ دراز پشاوری خودترنګزو بابا جی صاحب په څلور مه درجه پیر دی ترنګزو باباجی صاحب دهډی صاحب ، هډی صاحب دسوات صاحب، سوات صاحب دنور ډیری صاحب او تور ډیری صاحپ دعمرزو دحافظ جی ( اعنی حافظ دراز پشاور ) مرید دی نو اوس ګویا دترنګزو باباجی دخپل پیر دصریحی او مهر کړی فتوی خلاف دوهابی تحریك دتکمیل دپاره مال و سر په تلی کی نیولی و؟

عزیز صاحب دیته هم نه دی متوجه شوی چه په یو اقتباس کی وائي " دسرحدو جهالو پښتنو دلاسه دی تحریك ته ضرر ورسید" اوس مونږ په دی نه پوهیږو چه عزیز صاحب دترنگزوبابا جی صاحب په تعریف کی دا کتاب لیکلی که نه هغوی ته د .... په غرض.

عزیز صاحب وائي چه پاکستان جوړ شو نو باچا گل صاحب له دی کبله چه نه ئي غوښتل چه دکابل دواکدارو دلاس آله شی او ... او ... نو ځکه پاکستان ته راغی. زه وایم چه کاشکی دیو چا سره خوئي مشوره کړی وای نو هغه به ورته د ۱۹۵۸ نه دباچا گل صاحب تر وفاته پوری دغازی آباد دبمباری، دباجوړ دبمباری او په دغو علاقو کی دجرگو مرکو دپخپله فضل منان باچا صاحب دی ماندو دمعرفی دوری او په هغی کی دبمباری. له کبله دفیض طلب خان دپلار وکیل اکبر خان او داسی نور واقعات ذکر کړی وای چه کله دباچا گل صاحب عقیده دغسی ده لکه عزیز صاحب چه وائي نو اخر د وروستیو کلونو کی‌منځ ته راغله؟ او کم نه کم عزیز صاحب دپاره خو دباچا گل صاحب دغازی اباد د ډنگی ډوال مینی نه لږ ه حیا په کار ده. عزیز صاحب دا ویلی شی چه همدغه بزرگوار باچا گل صاحب چیری وفات شو؟ او دهغو ی زیارت چیری دی؟

هغه بیشکه دافغانستان بچی و ، په افغانستان کی دهغه قدر او مقام دپادشاه او وزیر اعظم نه پس په اوله درجه و. هغه ټول کارونه دافغانستان دحکومت په مشوره کړی دی او خدای مه کړه هغه ختی چه عزیز صاحب ئي په افغانستان تپی رشتیاوی نو ( خاکم بدهن ) دباچا گل صاحب لمن به پری دهیچا نه هم کمه نه وی ککره

دغلط بیانی حد دی چه عزیز صاحب وائي: دکابل حکومت باچا صاحب ته دری زره ایکړه زمکه بی شرط ( بې شرط څه معنی ؟ ) ورکړه حقیقت دادی چه سردار محمد هاشم خان جناب باچا ګل صاحب ته یو زر جریبه ( پنځه سوه ایکړه ) زمکه ورکړی ده کومه چه باچا ګل صاحب په دی ډول تقسیم کړه :

جناب فضل معبود باچا دوه سوه جریبه

مشر باچا ګل صاحب او دهغوی اووه زامن سل سل جریبه.

اعلحضرت دافغانستان پخوانی باچا په دارالا مان کی اووه جریبه زمکه دکورو نو جوړولو دپاره دیو څه مبلغ سره ورکړه چه بابا فضل منان باچا پکی کورونه جوړ کړل. عزیز صاحب دکتاب چه یوه بله برخه کی وائي چه عمرا خان نواب دعبدالرحمن خان نه په جنګ مشرقی علاقه اسمار ، چغه سرای او خواو شا علاقی ونیولی سبحان الله دمبالغی خو هم اخر یو حدوی، دا کوم احمق دی چه زمونږ دعزیز په سترګو کی ئي تردی حده خاوری اچولی دی؟ په تمامه دنیا کی یو څوك ( بی له عزیز صاحب ) داسی شته چه ددی خیالی جنګ تصدیق وکړی؟ او آیا عزیز صاحب نه دی خبر چه کوتړکی غلام حیدر خان غوندی جنرال ناست و او تازه ئي دنورو او مروری ا همی سیمی قبضه کړی وی؟ چترال او باجوړ خو دعمرا خان نواب نه انګریزانو واخست نه دا دافغانستان هغه وسیعی علاقی چه ده نیولی وی هغه تر چا واخستی؟ عمرا خان له باجوړ ه روانیږی نوی بادلیګیږی مونږ خو تش دومره خبر یو چه دیو څه رقابت نه علاوه دعمرا خان ، هډی صاحب او عبدالرحمن منځکی تفاهم و او عمرا خان داسی خاطرات په

تاریخونو کی درج دی چه دځینو مهماتو په باب به عمرا خان دهډی صاحب نه پوښتنه کوله او تر ټولو اهمه خبره چه مخکی ذکر شوه داده چه انګریزانو غوښتل دترکاڼی قوم غر دناوی پوری پخپله قبضه کی راولی چه دچترال داوړی ژمی سرك دکونړ دسند په شرقی غاړه کی تیر کړی خو هډی صاحب او عمرا خان دا کوشش ناکام کړ.

عزیزصاحب باید توجه وکړی چه عبدالرحمن خان دنن نه قریباً سل کاله پخوا عمراخان نواب ته دکال یو لك سپینی روپۍ مقرر کړی او دکابل په خوا کی په آغاعلی شمس کی ( چه اوس په کابل کارپوریشن کی داخل دی ) نهه سوه جریبه زمکه ورکړه ، کورونه ئي ورکړل ، نوکران ئي ورکړل او دهغه دنوابۍ ټول دبدبه ئي په ځای وساته . په اصل کی زه دخپل ګران ورور فضل منان باچا نه ګله مند یم چه هغه آیا په دی خبر ونه وخبر او که خبرو نو ایا په مناسب نه وای چه دافغانستان تاریخی اسلامی مملکت دومره دانګریزانو او هندوانو چړګری نه وای پیش کړی شوی؟ زه فقط دغومره وایم چه دعارضی مفادو یا دلالچ په خاطر دحقایقو مسخ کول ډیر لوی ظلم دی په خاص توګه چه دا لوبه دملکونو سره وشی.

## پاکستان ته دباچا ګل صاحب دراتلو علت:

څه وخت چه سردار شاه محمود خان دافغانستان وزیر اعظم مقرر شو نو کومی پارتۍ سره چه هاشم خان تعاون کاوه ( یا واقعاً یا سیاستاً ) سردار شاه محمود خان هغه پریښود او مقا بله پارتی ئي واخسته . حاجی صاحب مرحوم محمّد حسن خان ګردابی چه دامان

الله خان په دوستۍ معروف او دگوشتی خانانو ، دنوروز ملك كورنۍ الحاج امين ( مرحوم) ملك او عبدالخالق ملك چه په را ٔس کی ئي باچا گل صاحب واقع و دمخالفی پارتۍ قیادت ئي کاوه سردار شاه محمود خان د نظر بندۍ نه خوشی کړ او با لاخره ئي دباچاگل صاحب په ځای چه دمومندو مشرو او ډیره موده داپریدو مشری هم ورسره وه خو دکار د ډير والی له کبله ئي سیدا نور باچا اپریدی دتیراه دپاره خپل قایمقام مقرر کړ.

باچا گل صاحب ددی سړی وضعی له کبله پاکستان ته راغی. دا صحیح ده چه دقاید اعظم محمدعلی جناح سره دباچا گل صاحب روابط دوستانه وو هغه هم دافغانستان دحکومت په مشوره داسی و. دلچسپه ده چه عزیز صاحب ته وویل شی چه باچا گل صاحب دصوبه سرحد دځینو نورو شخصیتونو په مرسته چه په سرکی ئی مرحوم مزارې میا صاحب واقع دی دا مرحوم حکیم اسلم سخرئ هم لومړی افغان جرگه جوړ ه کړه او دی جرگی دا کهنډ هندوستان په مقابل کی افغانستان سره دصوبه سرحد دشاملیدو مطالبه وکړه .

دینه پس جناب باچا گل صاحب دافغانستان په نفوذ او مصرف دسرحد په سیمه دمسلم لیگ بنیاد کښیښود او دا ځکه چه افغانستان هیچری هم هندوستان دخپل گاونډی په طور نه شو تحمل کولای. دغه وختونه دی چه دخدائي خدمتگار تحریك او دهغه دمشرانو سره دباچا گل روابط خړ پړ شوی و یو په دی چه خدائي خدمتگارو به په هره جلسه کی په افغانستان پسی بدویل ، بل دا چه الهند هندوستان ئي غوښته په متحد هندوستان کی اخر دباچا گل

صاحب دپاره و څه ؟ او دریمه خبره داده چه خان عبدالغفار خان ویل چه زه یم ، باچا ګل صاحب ویل ته څوك ئي؟ چه یم خوزه یم ترنګزو باباجی او باچا خان منځکی دا قسم تکراونه راته ځکه چه خان عبدالغفار خان دباباجی روحانی مشریه ته کاملاً تابع و او باباجی صاحب دخانصاحب په سیاسی چودرایټ کی څه غرض نه لاره خو ولی باچاګل صاحب او خان عبدالغفار خان داسی نه و نو ځکه ئي ګوزاره ونه شوه او تر مرګه مرګه ئي یو بل ته پښی اړمی ولرلی.

دعزیز صاحب په خدمت کی عرض دی چه کله دمرحوم الحاج محمد حسن خان ګردابی زوال راغی او داود خان په زندان کی واچاوه نو باچا ګل صاحب رحمت الله علیه سیده دغازی آباد لاره ونیوه بیا چغه سرای ته لاړ ، بیا ئي په سرکاری هیلی کاپټر کی جلال آباد ته تشریف یووړ او دهغه نه پس بیا چغه سرای ته لاړ او بیا د داود خان په حکم کابل ته راغی او دوزیر اعظم په کور (ګلخانه ) کی ځای ورکړ شو او دا ځای دی چه عزیز صاحب زما د ورور فضل منان باچانه پوښتنه وکړی چه ګلخانه کی تاسو سره نور څوك و ؟ دیکی نوره هیڅ خبره نه شته نه پکی هندوان شته او نه پکی پیرنګیان او چودریان.

عزیز صاحب دالله بخش یوسفزی دانګریزی کتابونو ځینی هغه حوالی نقل کړی دی چه دده خوښی شوی دی. زه ده ته دا عرض کوم چه مونږ به دانګریزی کتابونو دحوالو په بنیاد هم تا سره منصفیه ته تیار شو خو ته به ورته غاړه کیښنږدی ځکه چه انګریز خو په سیاست کی دغلط بیانیه نه غیر بل کار نه لری او ددښمن په قول خواستدلال صحیح نه دی.

## دهډې صاحب په باب دمرحوم غبار تفصیلات :

ددیورند اجباری معاهدی دلاس لیك کیدو نه پس انګریزانو او امیر دواړو په فعالیت لاس پوری کړ. امیر اشتهارونه چاپ او خواره کړل، مبلغین ئي قبایلو ته واستول، دملکانو معاشونه او امتیازات ئي زیات کړل او داسی ئي دانګریز خلاف ددشمنۍ انګار په ډیر شدت تازه کړ علماء و به ویل ګوری مسلمانانو ! پیرنګی یو بد عهده دروغژن او غدار قوم دی په ده کی رحم او عاطفه او انسانی همدردی نه شته ، هندوستان خوئي ټول په چل و ل قبضه کړ اوس دا یوه ټوټه دازادو قبایلو اسلامی خاوره پاتی ده ددینه ئي چار چاپیره لکه دمار چجه ووهله او نن دی که سبا دی خو دا ملك دزرغونشاه دی. په دی معامله کی جناب ملا قدیم مرحوم دپلو ځی دسوات صاحب دخلیفه ملا خلیل خویزی رحمت الله علیه ځوی دځینو نورو کسانو په مرسته چه نومونه ئي ( مثلاً سلطن محمدخان ) زمونږ معرفت نه زیاتوی ډیره فعاله برخه واخسته ، ددی ټولو فعالیتونو مرکز ( جړوبی – یا چمرکند ) هډې صاحب رحمت الله علیه و . هډې صاحب تبلیغی ډلی او دپښتنو مشرانو جرګی دیر سوات ، چترال ، تیرا وزیرستان او هرهر ځای ته ولیږلی او داسی حالت جوړ شو چه دپیرنګی خلاف به هر ه ورځ خامخا په یو نه یو ځای کی دجهاد مثال لمبی وهلی.

بل خوا انګریزانو حلمیزو، ترکزو، یخډنډ، پنډیالی شیخ اسماعیل او خوا و شاعلاقو ته سرکاری مکتوبونه او بلن لیکونه خواره کړل چه ستا سو غرنۍ سیمه په انګریزی قلمرو پوری وتړل شوه

تاسو حکومت ته مراجعه وکړئ چه ستاسو دپاره دپیسو ټکو او پنی پټکی انتظام دسرکار په کاله کی وشی. غیرتمندو حلمیزو ترکزو ، دویزو اووتمانزو دخپلو علماء و په مشری هډی صاحب علیه الرحمه ته مراجعه وکړه هډی صاحب هغوی ته ډیر موءثر و عظونه او تبلیغات وفرمایل او دوی ته وئي ویل چه دافغانستان بادشاه ټو پك کارتوس او پیسی رالیږی هغه ولی نه اخلئ چه دپیرنگی پلیدو روپو ته لاس تیسئ. دغو غیرتی قبایلو دانگریز بلنه رد کړه او دجهاد فی سبیل الله په لاز کی ئي دخپل مال و سر دقربانی اعلان وکړ. امیر عبدالرحمن خان هم دخپلی وسعی مطابق مالی او حربی کومکونه قبایلو ته راسم کړل او یوه ډیره گرمه او دتماشو لو به جوړه شوه .

## دانگریزانو اخیری ناکامه حربه :

هرکله چه قبایلی عالم ټول په عبدالرحمن خان ورمات شو او دجهاد لمبی یوه ورغ دبلی نه غتیدی او اوچیتیدی نو په انگریزانو سخته راغله او خپله زړه حربه ئي راواخسته دانگریزانو دا عادت و چه په یوه لاره به ئي خان موقوف نه ساته که په یوه لاره به سخته وه بله به ئي راونیوه او که بله به ناکامه شوه بله به ئي رامخکی کړه همیشه یه ئي ددسیسو تنستی گرځولی. انگریزانو هډی صاحب ته په ډیره موثوقه او قابل اعتماده لهجه دعوت ورکړ چه که په ربنتیا دانگریز ددشمنی لاس واخلی نو مونږ به دمومندو او خوا شا علا قو عشر او ټول عایدات تاته حواله کړو.

هډی صاحب علیه الرحمه دا بلنه په اسلام او افغانیت پورې یوه پیشاړه وبلله او په ډیر حقارت ئي رد کړه او برعکس ئي خپل فعالیت نور هم تیز کړ او دژوند صحنه ئي په انګریزانو باندی نوره هم تنګه کړه .

## په دیر باجوړ د ټلګراف دلاین مخنیوی:

دانګریزانو له خوا دباجوړ نواب عمرا خان ته دا خواست وړاندی شو چه پخپله علاقه کی دی دټلګراف دستنو تیرولو اجازه ورکړی عمرا خان نواب دهډی صاحب سره په دی باب مشوره وکړه ، هډی صاحب هغه یوه لویه دسیسه وګڼله او نواب ته ئي تشریحات ورکړل په نتیجه کی نواب دانګریزانو دغه درخواست رد کړ.

## ننګرهار ته دهډی صاحب ستنیدل:

دهډی غوث داسلام دیو لوی مبلغ دروحانیت دیو لوی منبع او مرکز او دجهاد دیو اتل او علمبردار په حیث تر ۱۹۰۱ یعنی دشلم عیسوی قرن دنوی کیدو تروختنه چه د ۱۳۱۹ ه ق او ۱۲۸۰ ه ش سره سمون خوری په چمر کند کی پاتی شو. دپورتنی تاریخ د څلورمی خور ( جمادی الثانی ) په دوران کی امیر عبدالرحمن خان د ۵۶ یا ۵۷ کلنۍ په عمر وفات شو او امیر حبیب الله خان دخپلی باچا هۍ داعلان سره سم جناب هډی صاحب افغانستان ته راوباله .

دجناب شریعت مآب او طریقت پناه مولا نا نجم الدین او امیر عبدالرحمن مرحوم تر منځه چه په ضیاء الملة والدین لقب و

په خوا شا شل کاله د امیر مرحوم ته مشر وی. هر کله چه دا خبره ثابته ده او مطبوع اسناد لری چه دسوات صاحب رحمت الله علیه او امیر کبیر دوست محمد خان او دهغه نه پس امیر شیر علیخان سره ډیر نژدی روابط و او سوات صاحب علیه الرحمه دباجوړ او دیر مشران دافغانستان دپادشاه اطاعت ته تشویقول او په ... نیته چه دناوگۍ ، ښار ، پشد او دیر او دعلاقی دنورو لویو وړو نوابادو او خانانو معروف کنفرانس دشیرعلی خان تر مشرۍ لاندی په کابل کی جوړ شوی ( او تفصیلات ئي دانگریزانو په سری راپور ونو کی دتصاویر و او نیتی سره چاپ شوی دی ) او امیر ددیر نواب ته دری سوه ټوپك او ددغسی زری لنگۍ او خلعتونه او دغسی نورو نوابانو خانانو ته ټوپك ، لنگۍ او خلعتونه تصدیق نامی او فرمانونه ورکړل او سالانه نقد و جنس معاشونه ئي ورته وتړل ددی ټولنی په جوړښت کی دحضرت سیدو دغوث لوی لاس و.

څه وخت چه امیر شیر علیخان دخپلی معروفی تاریخی اشتباه مرتکب شو او شهزاده عبدالله ئي ( چه بیا وروسته ځوانیمرگ شو ) دخپل ولیعهد په حیث وټاکه نو دسیدوغوث چونکه دخپل بیعت په حبل متین باندی ټینگ تړلی و او دامیر ددی اقدام دتائید شدیده تقاضا کوله نو صاحب سوات خپله بیعت پاڼه او دتبریك مراتب په یو مفصل مکتوب کی چه یوه بلند با لا انشا ء لری دامیر حضور ته دا واستاوه او دشمس النهار جریدی ( زما خیال دی چه دلومړی یادوهمۍ گڼی) په صفحاتو کی چاپ شو.مقصد می ددی تمهیدی تفصیل نه دادی چه دامیرشیر علیخان او سوات صاحب

منځکی ددغسی روابطو له برکته دا خبره زړه ته په اسانی پریوځی چه امیر او حکامو به دهډی صاحب خواته دصاحب سوات دیو منلی خلیفه په حیث ډیر اهمیت ورکاوه او هیڅ بعیده نه ده چه هډی صاحب دی ددواړو ترمنځ دسفارت رول هم ادا کړی وی او دا شان دهډی صاحب دپیشرفت او شهرت دعواملو په جمله کی یو دا عامل هم وی. په دی حساب مونږ دا اټکل کولای شو چه دننګرهار دروحانی مراکز و تاسیس دی دحضرت نجم السالکین دجسمی او روحانی شباب په دوره کی شوی وی او په رووستنو زمانو کی دی تعقیب شوی وی. والله اعلم بالصواب.

## هډی صاحب ولی وغوښتی شو:

لومړی، ظاهری وجه خو داده چه امیر دخپل سلطنت په ابتدا کی د مختلفو ملا حظاتو له کبله دصاحب دقوت ، شهرت او تجربی نه استفاده کول غوښتل او دا هم یوه توجیه کیدی شی چه سردار نصرالله خان چه دپلاراوورور وزیر قبایل و پخپل دوست حاجی عبدالرزاق اندړی ( رئیس تمیز) باندی دزیات اعتماد یا دصاحب دضعیف العمری، په وجه دقبایلو دشمالی او جنوبی دواړو سرپرستی حاجی صاحب عبدالرزاق اندړی ته سپارل غوښتل. دانګریزانو په مخصوصو او خفیه راپورونو کی حاجی عبدالرزاق داس ستایل شوی دی: (۱)

---

۱ـ تحریك شیخ الهند دمحمد میا تالیف ، په دی کتاب دورښمین دستمال یا مکتوب ماجرا چه په لندن کی داندیا آفس دسرکاری ریکارد نه ترجمه شوی په تفصیل بیانیږی.

حاجی عبدالرزاق ددربار یو لوی ملا او دسلطانی مدرسی رئیس دی چه په مدرسه کی دفلکیاتو تدریس هم په غاړه لری. ده په دیو بند کی تعلیم کړی دی، دمولوی سیف الرحمن ( الکوزی قندهاری ثم پشاوری) مرید و . دی څه موده دسردار عنایت الله خان ( دامان الله خان دورور) استاد او مربی هم و. دی دسردار نصرالله خاص اعتمادی سړی دی او سردار دسرحد دعلماء و مشایخو او خوانینو سره دده په وسیله خط کتابت او اتصالات جاری ساتی. دی دسرحد دعلماء و او روحانیونو لوی دوست دی په تیره تیره دملا قمر الدین ( بړو میا صاحب ) ملا پیوند ه او لالا پیر ډیر سکه دوست دی. حاجی ملا عبدالرزاق په کابل کی دهندوستان دانقلابی پارټی پشت پناه بلل کیږی او د ( انگریزی ) سرحد نه اخوا چه څومره " فسادات " کیږی نو دا هر څه ددی سړی دلاسه دی ، موجوده قبایلی شورشونه ټول دهډی ملا عبدالرزاق نه پېښ دی او کله چه روسانو متر سنگهـ او عبدالباری گرفتار کړل نو ددی دواړو سره دملا عبدالرزاق په دسخط پاسپورټونه و.

ددغو دواړو کسانو هیئت دهند موقت حکومت روس سره دخبرو دپاره لیږلی و خو روسانو دوی بندیان کړل او دوی ئي سره داسنادو انگریزانو ته وسپارل. دبی غیرتۍ خو هم اخر یو حدوی په هرحال صاحب هډه کابل ته راستون شو مگر ډیر ضعیف او رنځور . تردی حده چه که څه هم ظاهراً دی په ۱۹۰۲ کی په هډه کی وفات شو مگر په حقیقت کی دامیر سره په کال کی شریك شو.

هډی صاحب دخپل زهد او تقوی دخپل ریاضت او عبادت ، دخپل علمیت او ایمانی فراست ، دخپل سخاوت او مروت او بالاخره دیو عمر جهاد په برکت همیشه ژوندی دی او دوخت په تیریدو سره به چه ځومره دی دماضی په تیارو کی زیات بوختیږی هغومره به دده رنړا ډیر یږی او لکه درحمن بابا دشعر دده په شخصیت او کردار او مناقبو کی به دهر فکر او هر صنف دخلکو دپاره ددلچسپی مواد موجود وی.

هډی صاحب بیشکه چه وفات شو. وماجعلنا بشرمن قبلك الخلد د ارشاد او طریقت یوه داسی عظیم الشانه خانقاه او دعلم او فضیلت یوه ستره درسگاه او دجهاد فی سبیل الله یوه نه ستړ یدونکی جذبه ئي پریښوده چه دملك په دین ، سیاسی او تربیوی سرنوشت باندی ئي ډیر ژور او لا فانی نقش دی. دهډی صاحب علیه الرحمه دعبادت او فضیلت او جهاد ننبی ځای په ځای په ډیر عظمت ثبتی دی. هر چیری چه ډیره سخته میره اوچول و بیا بان وی هلته په لکه دسرکو ډاگ یو جومات وی، یو کوهی به وی، دجومات خواته په چاتی، وی ورسره به د متولی کوروی چه دلاری امن به ساتی.

دهډی صاحب علیه الرحمه لنگر سره ددی چه نه ئي ښځه پاتی ده او نه اولاد دخو په حقیقت کی دده لکونه پیروان دده لویږی زامن دی تر دی نژدی وخته یعنی دنفوسو نه دهډی شریفی دخالی کیدو پوری په ښه شان جاری و. دده په زیارت باندی به دشپی ورځی تلا وت جاری و دکال عرس دپاره به ئي دمیا گل صاحب غوندی شخصیتونه دلر لری مسافو نه راتلل. اکثر به دسالگری په احترام کی

حکومت شریك و. دروژی ختم خو به پاکه میله وه دلنگر او زیارت
دانتظام چاری جناب سیادت پناه مجاهدشیخ پاچا صاحب داسلام
پورته حواله و. دهغوی دوفات نه وروسته دا وظیفه دهغه خلف
الرشید جناب مرحوم سیدعباس پاچا صاحب په غاړه واخسته او
دغسی دا اهتمام داسلام پور پاچا صاحب دکورنۍ په غاړه و چی (
سید عباس پاچا مشر څوی دمرحوم سیدعبدالله هم په خپل وار دغه
رسالت تر سره کړی دی. دنجم المدارس په نامه اعلحضرت محمد
نادرشاه غازی شهید دصاحب په نامه تاسیس کړه . اعلحضرت
نادرشاه یو مدبر او دطن دوست شخصیت و دده په باره کی
دهندوستان دمجاهد ینو او سیاسی شخصیتونو داثارو او آراءو په
لوستو سړی ته دا پته لگیږی چه دی څومره او څنگه سړی و.

دهډی صاحب یوه لویه او دخپل وخت پیمثاله کتابخانه وه
چه اگر که دمدرسی وقف خونه وه مگر علماء و به تری استفاده کوله.
هغه دپښتو یوه ټپه ده چه وائي:

ستا په نظر خاوری زر کیږی
که راته وگوری دسرو زروبه شومه

هډه، تکه توره او سپیره میره کفاری هډه چه دپودا هډ پکی
خښ دی او عمرو نه دبودائي تبلیغ لومړی درجه جهانی مرکز پاتی
شوی دی او دهری تړی لاندی ئي دبودا بوتونه دی او دبودائي عبادت
تاریخي مرکز پکی دزرگونو کلونو راهیسی ولاړدی چه دموزیم غیر
منقول په نامه ددغی هډی نه ! هو ! ددغسی هډی نه ددی شخصیت
په برکت داسلامی تعلیم ، اسلامی طریقت او شریعت او داسلامی

جهاد مرکز جوړ شو دیوه قرن نه زیاته موده دازکارو او تلاوتونو او تدریسونو مرکز پاتی شو او نور خو نور چه شرافت دائمی هم ورته حاصل شو خوك به ورته تشه هډه ووائي؟ نه هډه شریفه.

په پلوخې کې جامع جومات او آثار . په جروبی کی جامع جومات لنگر خانه او چله خانه چه اوس هم تری دمشکو وړمی پورته کیږی په چمر کند کی مسجد. لنگر خانه او چله خانه اودغسی هر هر چری ددی ستر شخصیت آثار او نښی نښانی دهغو معنوی بقا یاوسره چه دده له زهد او تقوی او دده دتربیت له برکته دترنگز و حاجی صاحب، بابړی ملا صاحب صوفی صاحب، چکنور ملا صاحب او .... په شکل کی دقوم او وطن دتاریخ په میدان باندی دستور و او لمرونو او سپوږمیو په حیثیت ځلیږی او ستره پښتونخوا پری رڼا رڼا ده .

دی دسترګو له نظره دبصارت په سویه غائبی مگر دزړو نو په دید دبصیرت له اړخه عیان عیان دی .

ای غایب از نظر که شدی هم نشین دل

می بینمت عیان و دعامی فرستمت

# دمرحوم اخونزاده صاحب خوارق

دمنطق دعلم علما وایي یو خارق العادت کار که دیوه چاپه وجود کی ښکاره شو نو ددغه شخص په باب باید مطالعه وشی که دده کړه وړه او اعمال داسمانی کتاب او نبوی احادیثو سره برابر و نو دا ولا یت او کرامت دی او که نه و برابر نو دی ته استدراج ویل کیږی ( دخدای (ج) عذاب ته نیږدی کیدل ) ساحران - جادوګران ددی قبیل خلکو څخه او مستدرجین دی.

لله الحمد مولانا مرحوم نجم الدین اخونزاده رحمت الله علیه دهغه بادیانته او با تقوی علماو او مجاهدینو څخه و چی خصم یی دانتقاد ګوته ورته نه ده پورته کړی او دده ولا یت او کرامت دده دتقوی په بنیاد منل شوی او منل کیده.ددی جناب په مجلس کی به هر وخت علمی تحقیقات روان و علماء به راغونډو او تحقیق به یی کاو دمثال په ډول په تشهد کی دګوتی پورته کول او اشاره - دماښام وخت قضایی عمری او داسی نوری مسلی به څیړل کیدلی یوه ورځ بحث روان دی دماښام په وخت خبری کیدلی دصاحب نظر څرګندشو ټولو علماو تاید کړ او ددوی خبره یی علمی و بلله یو تن دعلما و څخه وویل که دا خبره حق هم وی خو زه یی نه تایدوم ولایت مآب وفرمایل چی حق خو حق دی او څوك چی حق نه منی خدای (ج) دی په سترګو ړوند کړی.

۱ـ راوی ددغه عالم دخولی روایت کوی چی زه په سترگو ړوند شوم او ماځه نه لیدل او دشگی ملا صاحب څخه می تقاضا وکړه چی دجناب خوا ته می ور ولی کله چی زه هډی صاحب خواته ورغلم نو می ویل چی ای خلکو او علماو! دهډی صاحب خبره حقه ده زه یی هم تایدوم خو زه په سترگو ړوند شوی یم او تاسی صاحب ته عذر وکړئ چی ماته دعا وکړی چی خدای (ج) می بینا کړی په دی وخت کی جناب ولایت مآب زما په مخ او سترگو لاس تیر کړ او راته ویی ویل چی مزاح مه کوه ته خو بینا سړی یی کله چی می ولیدل واقعاً بینا شوم او دا خبره په ثواتر رارسیدلی ده .

۲- راوی وایی او دا راوی باد پښ ملا صاحب دی چی دهډی صاحب دخاصو او محرمو تلامیزو او خدمتگارانو د ډلی څخه و دی روایت کوی چی یوه ورځ راته ولایت مآب وفرمایل چی بادپښ ملاانشاالله نن شپه دماخوستن دلمانځه څخه وروسته زه او ته چیرته سفر کوو ما ورته وویل چی قربان ډیره ښه خبره ده دخیره سره ځو به . په تشویش کی ومه چی صاحب به چیرته سفر کوی ورځ تیره شوه مازدیگر شو ماښام شو او بالاخره ماخوستن شو ډوډی وخوړل شوه لمونځ وشو نوافل او وظیفې خلاصه کړه هر څوك په خپلو وظایفو اخته او مصروف شول ولایت مآب ماته وویل راځه چی ځو کله چی بهر ته راووتلو تور تم و دجومات شمالی برخی ته روان شو چی په همدی تورتم کی یوچا سلام واچولو جناب ورله سلام واخیست او وي فرمایل چی راغلی هغه ورته وویل چی هو جنابه راغلم ددغه سړی څیره نه لیدل کیدله ځکه تکه توره شپه وه څو قدمه چی وړاندی لاړو صاحب

یی له لاسه ونیو او په یوه ځای کی یی دکیناستو بلنه ورته ورکړه کله چی صاحب کیناست ماته یی هم وویل چی راځه دلته کښینه کله چی ما قدم په دغه ځای کیښود داسی پوه شوم چی یادپرانګ او یا دغرغی مسله ده خو کیناستم کله چی دری واړه کیناستو دا خرمن یا مسله هوا ته پورته شوه خدای ګواه دی چی دسرغونی می نیغ نیغ ودریده اوزړه می په درزاشو او دډاره راباندی داسی خولی را ماتی شوی چی په شامی ښکته روان وی په چرت کی غرق روان یم چی څه ډیر وخت وروسته دا خرمن یا مسله په ځمکه باندی ښکته شوه کله چی زما سترګی خلاصی شوی نو ډیر زیات شمیر سیاهی او صورتونو لیدل کیدل او څه خاص صحبت روان و ولی دتورتم سره اصلا مخونه نه لیدل کیدل او نه دشکل اټکل کیدی شو یویو په نوبت باندی زموږ سره ملګری په لاربښوونه راتلل سلام یی اچولو او جناب ولایت مآب به ورته په نفی اثبات استغفار کی اجازه کوله دی لړی زیات دوام وکړ ولی زه په ځان نه پوهیدم او ډار نیولی وم ولی یو وخت راغی چی دچرګانو اذانونه می تر غوږ ه شول چی له ډیر لری څخه راتلل په دی وخت کی دا خرمن بیا هوا ته پورته شوراو دری واړه روان شو او دڅه زیات ځنډ څخه وروسته په همغه ځای ښکته شو چی تری پورته شوی و زموږ ملګری د ولا یت مآب څخه اجازه واخیسته سلام یی وکړ او موږ خپل ځای ته راغلو دا وخت دتهجد وخت و چی شیخانو او دسونه کول او دتهجد و دمانځه لپاره یی تیاری نیو صاحب هم اودس تازه کړ دتهجد و څخه تر مخه ی ورته عرض وکړ چی صاحبه بلا

دواخلم موږ چیرته تللی و او داخلك ځوك و دوی وفرمایل دا خلك پیریان او طریقی یی وکړی او زما سره یی بیعت وکړ.

کله چی ددی دا خوارق لوستل کیږی نوسړی پوهیدلی شی چی ددی جناب دتقوی او ریاضت مقام څومره لوړ او دقدر وړ دی او په خپل وخت او زمان کی یی دخلق الله سره څه نیك روابط ساتلی او پاللی دی.

۳ـ راوی وایی چی داختر ورځ وه جناب ولایت مآب دهډی ډاګی ته (عید ګاه) ته دلوی اختر دلمانځه دادا کولو لپاره وتلی و په ممبر ولاړ و خطبه ئي لوستله چی دپچیر او آګام له خوا په زرها قارغان راغلل او په دی ډاکه کی دلمانځه کوونکو په اوږو او سرو نو باندی کیناستل او هاهویی شر وع کړ چی ټول خلك حیران پاتی شو صاحب امروکړ چی ورشئ او ډوډی ورته میده میده کړئ او ورته ګذاریی کړئ چی دوی وږی دی ډوډی غواړی هغه و چی شیخان لاړل او څو ټوکری ډوډی ګانی یی وړی وړی ټوټی کړلی او دشتی ته یی خوری وری ورګذار کړی هر قارغه ډوډی په مکو ښه کی واخسیته او ټول په خپل مخه ولا ړل.دا هغه څه دی چی دوخت ټولو حاضرینو لیدلی دی.

۴ـ کله چی دهډی جومات جوړید نو دولا یت مآب څخه چا وپوښتل چی صاحبه! وایی چی جومات جوړیږی حضرت خضر په کی کار کوی اما دی زموږ جومات ګی ګوندی کار کوی جناب اخونزاده صاحب ورته وفرمایل چی حضرت خضر (ع) څو هره ورځ دلته په کار اخته دی هغه شنبی رنګی دخامنا جامی چی یي په غاړه وی هغه

حضرت خضر دی کله چی هغه شیخ په دی لټه کی شو نو وی لیدل چی دنیلی رنګو جامو سړی ربښتیا په کار بوخت دی ورنږدی شو او ورته وی ویل چی ته خو حضرت خضر یی ما ته دعا وکړه ددی خبری په اوریدو حضرت خضر غایب شو او بیا به نه لیدل کید څو ورځی وروسته جناب ولا یت مآب په هغه شیخ باندی په عتاب شو او ورته ویی ویل چی حضرت خضر خو دی خپه کړی دی اوس کار ته نه راځی.

**۵**ـ وایی میا ابراهیم جان چی بیا وروسته په شیخ پاچا باندی ونومول شو او شهرت یی پیدا او داسلام پورو دکوز کنړ دښیوی دولسوالی مربوط و په ترقی کی و په اس به سور ګرځید او نوکران به یی هم وریسی په آسونو سپارو کوم دخوګیانو سرخرود ، حصارك کنډی باغ چپرهار په دوره راوتلی او دسپرو پوره ډله ورسره ده کله چی دللمی څخه راتیر شوی دی ویلی دی چی راځی دا دهډی شیخ ( هډی صاحب ) وګورو چی څه کوی او دشیخانو ژوند څه ډول وی؟ هغه و چی په هډه را داخل شوی دی او په آسونو سپره ډله ده خلکو چی لیدلی دی پیژاندلی دی چی پاچا صاحب دی . شیخانو اخونزاده صاحب دهډی ته خبرورکړی او هغوی یی دسیادت په درناوی مخی ته راوتلی دی راشه درشه یی ورسره کړی دی آسونه یی ورڅخه نیولی او دوی دهډی صاحب سره په ملګرتیا دجناب دعبادت حجری ته تللی دی دجناب مرحوم پاچا صاحب دخولی روایت دی چی کله ما اخونزاده صاحب ولید دده په لیدو سره زما ټوله مستی او غرور ختم شو او په زړه کی می دخدای (ج) دانوارو شمع بله شوه.

درواج له مخی جناب مرحوم پاچا صاحب وایی زما په سر د وریښمو خولۍ او مشهدۍ لونګۍ می په سروه په دواړو لاسونو کی می د سپینو زرو یا وګان پراته و په لاس باندی می ګوتې وی او دچولی کمیس می په غاړه و چی دګریوان ګردا ګردیی دوریښمو مزی و او د ټټر په منځ یی یو غټ دوریښمو زونډی وخوز ما سترګی د ډیری حیا څخه نه پورته کیدلی او دولایت مآب دروحانی تاثیر لاندی راغلم. دخبرو په ترځ کی راته هډی صاحب وفرمایل چی جناب پاچا صاحب ته خو اولاد د رسول او یو مجاهد شخصیت یی ټول ځان دی په وریښمو سینګار کړی دی په لاس کی دپاوګان پراته دی په لاسونو دی زیاتی ګوتی دی زه خوي ستاسی د شان سره لاژم نه بولم جناب پاچا صاحب وایی چی ما فوراً ګوتی اوپاو ګان هم له لاسه ووېستل او دولایت مآب په مخکی می واچول او دجامو په باب می عرض وکړ چی کورته لاړ شم نو نوری ساده جامی به دځان لپاره جوړی کړم او دا ډول جامی به نوری نه جوړوم دوی وفرمایل او یو شیخ ته یی امر وکړ چی هله زما یو جوړ جامی پګړۍ او خولی دپاچا صاحب لپاره په دغه بله حجره کی تیار کړه چی دوی خپلی جامی بدلی کړی کله چی دا کار و شو زه هم پاخیدم خپلی جامی می بدلی کړی سپینی جامی سپینه خولی او سپین پټکی ما وتړل کله چی دحجری څخه بیرته ددوی حضور ته راغلم نو عرض می وکړ چی زما نه خودی شیخ جوړ کړ نو دوی وفرمایل چی جناب پاچا صاحب شیخی خو څه بد کار نه دی شیخان خو ستاسی دنیکه حضرت محمد (ص) په طریقه روان دی ذکر او اذکار کوی او سنت ژوندی ساتی تاسی به دنن وروسته په شیخ

پاچا صاحب یادیږی نو ما ورته وویل چی دغسی ده نو اوس راته وظیفه او طریقه راکړه چی سم شیخ شم دوی وفرمایل چی بس نفی او اثبات لا اله الا الله وایه او استغفار وایه چی هر څو مره دی دلاسه کیدل کله چی دوی ما ته اجازه وکړه نو زما په وجود باندی خولی را ماتی شوی او په یو عظیم دریاب کی لا هو شوم شپه می ټوله په عبادت او بندګۍ تیره کړل سهار چی می چای وخوړ نو صاحب څخه می رخصت واخیست ډیری دعا وی یی راته وکړی او داسلام بوړپه لور روان شوم پر آس سپور وم ولی نه ما کی هغه مستی وه او نه زما په آس کی دالهی معرفت په انوارو کی ډوب روان وم تر څو اسلام پورته ورسیدم . ( ان قدح بشکست و ان ساقی نماند )

چیرته چی به دورځی په سلهاو دڅرسو چلمان سکل کیدل هغه څرس خانی دخدای (ج) دیاد و په حجرو بدلی شوی چلمان مات شول څرس په اور وسزولی شو اذان او اقامت شروع شو دحی علی الصلوه او حی علی الفلاح آوازونه پورته شول اسلام پور دعلم او تدریس مرکز جوړ شو او ددین دعلماو تحقیقات به پکی کیدل لنډه دا چی اسلام پور واقعاً داسلام څخه ډك شو او دجهاد او مجاهدینو دروزنی مرکز و ګرځید. داو د جناب ولایت مآب هډی صاحب کرامات او خوارق چی دغه ډول مستان به یی په یو وار لیدلو باندی مهار شول او په سمه لاره باندی روان شول جناب شیخ پاچا صاحب داخونزاده صاحب دوصیت په اساس دهغوی دوفات څخه وروسته ددوی دخلیفه په حیث دهډی صاحب په هدایت دغه دیره ډیره ښه وبالـــله او وساتله البته دنورو په ګډه همکاری او تغاون لنګر جاری

و او دغه دخدا پرستی مرکز او دیره دالهی انوار و په رڼا روښانه وه .
ددی موضوع په باب یو څه یادونه تر مخه هم شوی ده .

۶ـ ددی خبری څخه هیڅوك انکار نه شی کولی چی هر هغه مرید او ماذون چی ددی عالی جناب ( هډی صاحب ) په طریقت کی داخل شوی دی په مادی او معنوی لحاظ دپوره عزت خاوندان شوی دمثال په توګه دبوتخاك حضرت صاحب دبړو میا صاحب - دتګاو میا ګل صاحب پلار- ترنګزو حاجی صاحب - چکنور ملا صاحب - دسرکانړو میا صاحب - تیرګړو پاچا صاحب - سیدزیور شاه پاچا صاحب - دچهار باغ حضرت صاحب- شګی ملا صاحب او ددوی امثال چی دمخه یی په دی کتاب کی ذکر شوی دی او تر ننه ددوی کورنی په مادی او معنوی لحاظ د ډیر عزت لرونکی او دا د مرحوم ( هډی صاحب ) کرامات او خوارق دی او ددی څخه انکار لمر په دوه ګوتو پټول دی. البته چا چی دا لاره پریښی ده دذلت په خوا روان دی او هغه هم هر څوك ګوری او کومه پټه خبره نه ده . په معنویت کی ددوی ماذونان شاګردان او شیخان ددوی اولاد و او ددوی معنوی میراث یی ژوندی ساته او باید ویی ساتی څکه چی دا لاره خدای (ج) ته درسیدو لاره ده او باید تعقیب شی چی منزل مقصود ته ورباندی ورسیږو. ترمخه په دی خبره باندی څه اجمالی لیکنه شوی چی اخونزاده صاحب دهډی دجومات تر څنګه خاورته سپارل شوی و او یوه کوټه ورباندی جوړه وه چی دجومات دلاری هم ورته خلك راتلل او دبهر څخه هم ورته لاره وه لنګر خانی - چله خانی مدرسه دا ټول جوړ و خو کله چی په افغانستان کی دبدبختی نه ډك انقلاب راغی او په ټول

ملك کی خرابی ته ملا وتړل شو ه نو ددغه مرحوم جومات زیارت او مدرسه هم دړی وړی او دخاوروسره خاوری شو او سپیره بادونه وربانډی وچلیدل دتوپونو او طیارو دبمبار یو له امله دخاورو څلی شول او وخت وربانډی تیرید. پرځای بولم چی ددی خبری ذکر وکړم او هغه دا چی دهډی صاحب په مریدانو کی یو شمیر داسی خلك هم و چی خپله هستی یی دتل لپاره دهډی صاحب په لنگر کی مصروفوله او دا کار یی دخدای (ج) درضا له پاره کاو چی دهغه جملی څخه دازاربزو دکوچینانو دقبیلی یو معزز او په خدای مین سپین ږیری و چی نوم یی علاوالدین و دا قبیله به دژمی په موسم کی دننگرهار دولایت دحصار شاهی د ولسوالی مربوط په کوز بړو کی او بسیدل او داوړی په موسم کی به دکابل په بیلا بیلو سیمو کی لکه کوهدامن - کار دښمن او داسی نورو برخو کی ژوند کاو مال او تجارت پیشه خلك و.

مرحوم علاو الدین چی دخپلی قبیلی خلکو به ورته علاوالدین بابا وایي داخونزاده صاحب دلنگر لپاره به یی دخپل قوم په مرسته په کال کی دولس‌سوه سپینی روپی پسونه - غوړی او قروت لنگر ته ورکول او نوری مرستی به یی هم ورسره کولی دا خلك په مجموع کی دینداره خلك و او ددین سره یی زیاته علاقه درلودله او اخونزاده صاحب دهډی هم ددوی خاص دعا گوی و او دوی ته به یی دخیر او فلا ح دعا وی کولی او علا والدین مرحوم ورته په ښه تقوی او دیانت ډیر گران و.

علاوالدین په خپل ژوند او دهډی داخونزاده صاحب په حیات کی دا سلسله جاری ساتله او دهغوی له وفات څخه وروسته دعلاوالدین په کورنی کی حاجی محمد گل مرحوم چی یوه دوره دکوچیانو له خوا په ملی شورا کی وکیل هم پاتی شوی دی هم په خپل وارترڅو چی دلنگر لړی جاری وه خپلی مرستی جاری وساتلی او خپل رسالت یی وساته . دوخت په تیریدو سره نه لنگر پاتی شو او نه شیخان او په افغانستان باندی داسی عذاب نازل شو چی هر څوك یی وینی او لا روان دی خو دی سره سره څو کاله تر مخه دعلاو الدین بابا دکورنی څخه دحاجی صحرگل حاجی زړاب گل - حاجی جنت گل حاجی افضل - حاجی عبدالمالك چی د مرحوم حاجی محمد گل ځامن دی دلومړی وار لپاره داخونزاده صاحب مرحوم مرقد مبارك په گډه سرمایه بیرته له سره جوړ کړ او ددوهم وار لپاره دجومات دجوړیدو کار دحاجی زړاب گل ځوی حاجی نجیب الله زړاب د ډیرو زیاتو روپو په مصرف شروع کړ اوتکمیل یی چی دکتاب په پشتیو یی عکسونه چاپ وی دمصرف داندازی دمعلوماتو له راکولویي معذرت وغوښت.

داټول مصارف ددی کورنۍ غړو دخپلی شخصی سرمایی څخه کړی دی او لا کوی خدای (ج) دوی ته ددی لوی خدمت اجر او عوض ورکاندی او ورکوي یی اخونزاده صاحب دهډی سره نه توپ و نه طیاره او نه کوم بل مادی قوت بلکه دخدای (ج) په لاره روان و او دخدای (ج) ددین تبلیغ او دعوت یی کاوه او جهاد فی سبیل الله یی عملی شعار و نو ځکه خو یی په ژوند هم مرسته کوله او دمرگه

وروسته هم داسی خلك لکه چی دمخه یی نو مونه یاد شوی او یاددوی امثال په سر او مال ورسره مرستی ته تیار دی. دا دی دجناب اخونزاده صاحب خوارق چی پس له مرگه هم ددوی دپاره او ددوی داثارو دساتنی لپاره په کروړونو مصرف ته غاړه ږدی او لله فی الله دغه کارونه دځان لپاره دخدای (ج) درضا یوه وسیله گنی او همداسی ده هم.

په خپل وخت او زمان او داخونزاده صاحب دوفات څخه وروسته هم دده ماذونانو دهډی دمرکزی لنگر خانی سره خپلی مرستی جاری ساتلی دی او دغه لنگر خانه به همیشه گرمه وه او دمرحوم شیخ باچا تر ژونده هم لنگر چلیدولی دهغوی دوفات څخه وروسته داسی حالات راغلل چی دا لاره په شړیدو شوه او دا خو ځکه چی له یوی خوا په مجموع کی په خلکو کی داخبره ضعیفه شوه او له بل خوا دماذونانو په اولا دی هم څه خاص بدلونونه راغلل او ددنیا دلالچ سره مخ شولو او په اصطلاح میم زور ما تبوله زما هر چا ورباندی دځان لپاره خیتیه واچوله هر څه سره تالا ترغی شوی که له یوی خوا په خلکو او دماذونانو په کورنیوکی دا احساس کم شو ورسره ورسره په دوی باندی هم ژوند تنگ شو او هغه دبد به چا ته پاتی نه ده بلکه د زیاتو ستونزو سره مخامخ دی او لاگورو به یی چی څه کیږی؟

زه په صراحت دا خبره کوم چی نن سبا داخونزاده صاحب دهډی دروحانیت په خاندان کی چی د ماذونانو کورنی دی یوازي او یوازی سناتور صاحب ، چکنوری پاتی دی چی تسل ورباندی کیږی او

بس خدای (ج) دی ورته عمر ورکړی او نور سره مات گوډ شوی دی او ځپلی شپی ورځی سبا کوی دی لاری ته یی څه خاصه پاملرنه نه شته دی ځوك په دولتی چو کیو کی په کارونو بوخت دی او ځوك بهر دنیا ته تللی دی پیسی گټی او یو شیمر یی په نورو لارو روان دی خدای (ج) دی مل شی.

هر قام ځان ته خصوصیات او عنعنات لری دافغانستان خلك هغه چا ته خاص درناوی لری چی یا دروحانیت مقام ولری یا قومی افتخارات ولری ولی نن سبا دزور کلی روان دی او دزور یارانی دی چا سره چی ډیری مشینی وی او ډیر خلك یی وژلی شول دهغوی باب دی او داسلا فو خصوصیات په کی په مجموع کی یاورك او یا کم شوی دی.همدا علت دی چی نه په ډعا متونو باندی دچا باور نشته او همکاری ورسره نه کیږی او ملك دخرابی اوبربادی په خوا روان دی.

یو شمیر خلك په علما و – مشایخو- روحانیونو باندی تور لگوی او په راز رازنو مونوی یاده وی چی زما قلم دداسی جملو ډیادونی څخه کرکه کوي او دقلم بی عفتی یی گنم او همدا سی ده ولی راځی چی قضاوت وکړو نور خو نور مولنا نجم الدین بوتخاك حضرت صاحب . . – چکنور ملا صاحب تیرگړو پاچا صاحب دسلام پور شیخ پاچا صاحب دسرکانو میا صاحب دترنگزو حاجی او داسی نور ډیر افغانی علمی روحانی شخصیتونو چی داسلام داعتلا او دوطن دخپلو اکی په لاره کی دانگریزی عظیم طاقت په مقابل کی کومی قربانی ورکړی دی ماته خو دی ځوك بل مثال را په گوته کړی

زه به وایم چی هو! یوازی او یوازی همدا خلك و چی افغانستان
عزت او پت گنلی دی البته دبا ضمیره افغانانو په ملا تو او
راځی چی په ننو باندی حساب وکړو چی دوی څه وکړل او څه کوی؟
هغه ځوك چی دتل لپاره دغه با وجدانه او باضمیره روحانی او علمی
شخصیتونه په یو نوم او بل نوم یادوی ددوی خپلی منحوسی څیری
دچا څخه پټی ته دی او دخپلو اعمالو په شیشو کی نور خلك گوری
زه په خپل وار یو وار بیا دمحترم رهین، ددی نیك اقدام قدر دانی
کوم او دعلا والدین دکورنۍ ټولو غړو ته او په خاص ډول حاجی
نجیب الله ( ژراب ) چی په ډیره تنګۍ ځوانۍ کی یی داسی عظیمو
خدمتونو لپاره خپل ځان او مال وقف کړی دی او دنجم الا ولیا
جومات او ملحقات یی په زیات مصرف جوړ کړل دعزت اوږد عمر
غواړم او دزیاتو خدمتونو توفیق ورته غواړم خدای (ج) دی دده په
عمر سر و مال برکت کیږدی.

ما له دوی څخه په دی لا ره کی دنقدی مصرف معلومات
وغوښت ده وویل چی موږ داکار دخدای (ج) درضا لپاره کړی دی نه
غواړو چی زموږ نوم یاد شی او یایی دمصرف اندازه چا ته ووایو.
ولی زموږ فرض دی چی دداسی خدمتونو یادونه وکړو او دداسی
خدمتگارانو نومونو تاریخ ته وسپارو، البته اخروی اجر یی
دخدای(ج) سره دی هغه به ورته ورکړی.

( و من الله التوفیق )

